

# کندهار

شیرخان بندرچې د ګران هیواد په شمال کې یو تجارتي بندر دی هر کال په زرو ټنه تجارتي
مالونه ددغه بندر د لارې خارجي هیوادو ته ځي او راځي او زموږ د تجارت
او اقتصاد په انکشاف کې مهم رول لوبوي.

# د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتی مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)

کندهار

میاشتنی خپرونه

ادبی، تاریخی، اجتماعی، علمی

اداره: د شهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹
د دولسم کال څلورمه ګڼه
پرله پسې ګڼه ۱۳۰

کالنی بیه

په کندهار کی [۲۸] افغانۍ

د هیواد په داخل کی [۳۲] د

په بانديو هیوادو کی یو ډالر

د چنګابش میاشت
۱۳۵۰ لمریز کال

---

## ددې ګڼې مضامین


| | |
|---|---|
| د هیواد په بیلو بیلو ښارونو کښې د صنعتی بانکی . . | ۱ مخ |
| شعر څه شی او څه صفات اري؛ | ۲ مخ |
| په قولنه کښې محبوبیت | ٤ مخ |
| ملی احساسات | ٦ مخ |
| په فرانسه کښې تعلیم او تربیه | ۷ مخ |
| روحی اضطراب او د هغه علاج | ۹ مخ |
| دژبی اختلاف د یوه لغت په ترجمه کښې اشتباه . . | ۱۲ مخ |
| د ادب ګلونه | ۱٤ مخ |
| لومړنی مینه | ۱۵ مخ |
| د شاعر غرور | ۱۵ مخ |
| افلاطون څوک ؤ؛ | ۱٦ مخ |
| د تیاتر لنډه تاریخچه | ۱۷ مخ |
| کلاسیکه ادبیات | ۱۸ مخ |
| میر بابا (رح) | ۱۹ مخ |
| چوبتیا | ۲۰ مخ |
| د فضا او خودا کی شیانو عصر | ۲۱ مخ |
| د تلویزیون باره څه وول . . . | ۲۲ مخ |
| د بدن سره د خولی رابطه | ۲۵ مخ |
| د هند د حیدر آباد ښار | ۲۷ مخ |
| یادونه | ۲۹ مخ |

# دهیواد په بیلو بیلو ښارونو کښې
# دصنعتي پانګې په کاراچول

ددې لپاره چې زموږ خلک پوه شي دهیواد په مرکز یعنې کابل او یا نورو لویو ښارونو کښې تمرکز ونه کړي او په تیره بیا کابل د نفوسو دزیاتوالي او ددغې ناحیې څخه د زیاتو اقتصادي او اجتماعي مشکلاتو سره مخامخ نشي او هم دهیواد نورې سیمې دخلکو

داقتصادي اوصناعتي فعالیتونو څخه خالي نوي باید دهیواد په بیلو بیلو ښارونو کښې صنعتي پانګې تشویق او په کار واچولې شي دولت څو کاله دمخه دهیواد دټولو سیمو دعرفاني عمراني، صحي، اقتصادي او اجتماعي انکشاف

په منظور او ددې لپاره چې په اداري چارو کښې خلکو ته آسانتیاوې پیښې شي هیواد یې په ۲۸ ولایتونو وویشي او په دې ډول دهر ولایت انکشاف ته زمینه مساعده شوه او اوس هر دسیمه دژوند په ټولو چارو کښې په متوازنه توګه پرمختګ کولای شي .

که څه هم اوس زموږ لوی ښارونه لکه کابل، کندهار، هرات او داسې نور نسبت پخوا ته دنفوسو دزیاتوالي له حیثه دمشکلاتو سره مخامخ دي او د نورو سیمو خلک ورو، ورو دغو لویو ښارونو ته دکارونو دپیدا کولو او

ژوند دسمون له کبله څي، نو حال دا چې پانګه په لویو ښارونو کښې تمرکز مومي، خو دولت غواړي په دوهمه مرحله کې دهیواد دوړو کې ښارونه دصناعتي فعالیتونو مرکز وګرځوي او سرمایه ګذاري پکښې وشي .

په ۲۸ ولایتونو دهیواد ویشل که په اداري لحاظ دهیواد والو زیات مشکلات دمنځه یو وړل او دهرې سیمې خلکو ته زمینه مساعده کړه چې وړو کو ښارونو ته ژر تر ژره ورتلای او مشکلات حلولای شي نو دغه کار په دغو

ولایتو کې دخلکو اقتصادي صناعتي، زراعتي او داسې نورو فعالیتونو ته هم لار خلاصه کړیده .
مثلاً پخوا زابل، روزګان او هلمند په کندهار پورې تړلي وه خو اوس هر یو بیل بیل ولایت

او ښاري حیثیت لري او نن په هر ولایت کې دحکومت او خلکو په ګډه کوشش دټولو چارو دانکشاف اودژوند دښه کیدو له پاره کوشش

کیږي او دزابل، روزګان او هلمند خلک غواړي زموږ خلکو ته په کار دي چې ددولت ددغه پروګرام څخه چې غواړي دهیواد بیلې بیلې سیمې په متوازنه توګه انکشاف وکړي

او په بیلو بیلو ښارونو کې دصنعتي پانګې په کاراچولو له کبله خلک په ټولو ښارونو کې تمرکز او خپل فعالیت پرمخ بوزي ښه هر کلی وکړي او کوشش وکړي چې هر څوک خپل تجارتي او صناعتي فعالیتونه په خپل ښار کې

شروع او تویدې دستګاوې په کار واچوي چې په دې ډول یې ښارونه د ژوند په نورو ډګو نو کښې هم پرمخ ولاړ شي او په کابل او نورو لویو ښارونو کښې په سرسام آوره ډول دخلکو دزیاتوالي مخه ونیول شي .

موږ دزابل، روزګان او دا ډول نورو ولایتو دخلکو نه غواړو چې دخپلو ولایتونو سره په دغه هکله زیاته مرسته وکړي او د مربوطو مقاماتو نه غواړو چې په زابل روزګان او نورو ولایتونو کښې د ګمرک

خانګې ولري د دا ډول ځانګو دپرانستلو له کبله دزیاتو تجارتي او صنعتي فعالیتونو دپاره زمینه مساعده کړي .

«اړو بې»

د الحاج حبیب الله (سرپاس) ژباړه:



# شعر څه شی

# او

# څه صفات لري؟

## خمریات

پر هغو اشعارو باندې اطلاقیږي چې د ساقي، ساغر جام اود میخانې د مسایلو بحث پکښې شوی وي چې د عمر خیام د رباعیات د خمري اشعارو بهترینه نمونه ده.

## مناظره

هغه شعر ته ویل کیږي چې شاعر دوه شیان په خپلو اشعارو کښې په مباحثه او په گفتگوی راولي لکه: د انوري د باد و باران او د گل د سرو ی مناظره، یالکه د شمعې او پروانه یا د رایت او پردې د سعدي صاحب، لکه بودا او بلبل د ساوجي، یالکه د زاغ او د عنصري باز.

## حسب حال

هغو اشعارو ته ویل کیږي چې شاعران د خپلو شخصي روحي تاثیراتو یا د خپل ژوند د شخصي اوضاعو په باره کښې ویلي وي لکه: د جمال الدین اصفهاني اشعار، اویا د نظامي اشعار چې د ژوند د آخر د مرحلو په باره کښې ئې حسب حال ویلي دي.

## حماسي او مفاخره

هغو اشعارو ته وایي چې د تاریخي خوږو تکلو او داستانو په ضمن کښې د جنگو، حوادثو اود جنگي کیفیاتو شرح بیان شوی وي او ضمناً د ملي مفاخرو

د شجاعت اود عزت نفس توصیف پکښې کي راغلي وي لکه د فردوسي شاهنامه؛ د انوري حماسي اشعار او دغه رنگه د مسعود سعد سلمان او خاقاني مشهوري حماسي.

ابن یمین خپل ځان تر عنصري، او انوري، او حدي، او خاقاني تر رشیدي د طواط په دې فن کښې ځانو ته بورته بللي دي؛ دغه ډول د ایلیا اود نسه حماسي

دقدیمو اشعارو نمونې شمېرل کېږي.

## شکوائیه

یو ډول اشعار دي چې شاعر د محرومیتو اود بدو وضعیتو، دخوارۍ او حیرانۍ په قبال کښې شکایت کوي لکه: د انوري (دسفر شکوه)، د خاقاني (د زمانې د حوادثاتو شکوه) اود جامي شکوه چې د خلکو د جور او ستم څخه ئې کړېدي.

## اعتذاریه

هغو اشعارو ته ویل کیږي چې شاعر بېرته لدې څخه چې د ممدوح د درگاه څخه تر ټل شوی وي د خپلو اتهاماتو او خطاؤ په رد کښې د عذر بساط غوړولی او عفوه ئې غوښتې وي.

داسبک په عربو کښې سابقه لري لکه د جاهلیت په دوره کښې د ذبیاني (اعتذاریه) چې د نعمان بن منذر د دربار د شړلو په مناسبت ئې ویلې دي، اود مسعود سعد سلمان (اعتذاریه) چې د حبس په دوران کښې ئې

ویلې دي. دغه رنگه د فرخي د (قطران) د انوري دوې قصیدې چې یوه د (سلطان محمود) او دوهمه د (امیر یعقوب خان) د سلطان ورور د اعتذاري په نسبت دي.

## هجاء، هزل، مطایبه

هزل او مطایبه د رذایلو اود قبایحو د ذکر کولو اود شخصي فضایلو او مکارمو نفي کولو څخه عبارت دي چې کله کله ئې مدحه او کله کله ئې هجوه وایي لکه

د قاهاني هجو د دوستانو په حق کښې اود خاقاني هجو د رشید په حق کښې اما هزل هغو ابیاتو ته ویل کیږي چې د خندا اود مسخرو بوه قصه یا تکل په رکیکو الفاظو ویل شوی وي.

## لغز، معما، د تاریخ ماده

(لغز) هغه اشعار دي چې شاعر یو شی په نظر کښې ونیسي او د هغه صفات په متشابه او مشکلو عباراتو په کښې بیان کړي خو داسې نه چې نوم یې ذکر یا بیان کي لکه د منوچهر لغز د (حمام) او د (شمعې) په باره کښې او (معما) هغه شعر دی چې شاعر د یو شي نوم په ابهام او کنایه سره اظهار کړي.

د (تاریخ ماده) هغه شعر یا ابیات دي چې شاعر د ولادت یـا د جنګ یا د یوه سړي د مـرګ تاریخ په صریح ډول یا د ابجد په حساب په خپلو ابیاتو کښې راولي لکه: حافظ چې د خواجه قیام الدین په مرګ کښې لیکلي دي او دغـسې نور.

## د شعر او د نظم توپیر

یو نوع منظوم او مقفی تخیلاتو ته شعر ویل کیږي د شعر په تعریف کښې ویل شوي دي، چې شعر یو موزون او مقفی کلام دی، لاکن ممکن دی چې یو کلام شعر وي او نظم نه وي چې پدې صورت کښې هغه منثور شعر، او په فرانسه کښې هغه ته Verbes - Libres وایي، او نظم په لغت کښې د تالیف په معنی او په اصطلاح کښې چې قافیه ولري موزون کلام ته ویل کیږي.

### نثر

نثر په لغت کښې پاشلی دل (پراګنده) او په اصطلاح کښې هغه کلام ته ویل کیږي چې په وزن او قافیه پابندي مقید نه وي، لیکن په عین حال کښې ډیر نثر ونه د موزون په حالت کښې ویل شوي دي.

## د شعر انواع او ډولونه

١: بیت.
٢: رباعي.
٣: قطعه.
٤: مثنوي.
٥: قصیده.
٦: غزل.
٧: مسمط.
٨: ترجیع بند.

### بیت

په لغت کښې د کور په معنی، او د ادبیاتو په اصطلاح دوو مصرعو ته چې قافیه ولري بیت ویل کیږي.

## رباعي

رباعي د دوو بیتو (٤ مصرع) څخه عبارت دي چې پر یو وزن وي او د دریمې مصرعې ماسوا په قافیه کښې سره متفق وي.

رباعي د دري د شعر د مختزعاتو څخه دي؛ عربان دې بیتې د فارسیانو څخه اخیستې دي؛ د عمرخیام رباعیات یوه نمونه د دغسې رباعیاتو څخه دي.

## قطعه

عبارت له یو څو بیتو څخه ده چې د لومړۍ مصرع مطلع درلودنکې نه وي او ویل کیږي چې قطعه باید له ١٢ بیتو څخه تجاوز ونه کړي.

## مثنوي

هغه شعر دی چې بیتونه یې د قافیې له حیثه یو د بله سره مختلف وي او هر بیت له ځانه دوې قافیې وي، د مولوي مثنوي یې صحیح نمونه ده.

## قصیده

پر یوه وزن او یوه قافیه پابندي یو څو بیتونه دي او مشتمل دي پر یو مقصود او مطلوب باندې چې هغه هم مشخص وي لکه: حماسه، هجا، رثا؛ لاکن پدې شرط چې اول بیت یې مصرع وي.

ځینو ویلي دي چې د بیتو اقل عدد یې ٢١ او اکثر حد یې محدود نه دی ځکه ځینو شاعرانو تر دوو سوو بیتو پورې قصیده هم ویلې ده.

د انوري، فرخي، خاقاني، ظهیرفاریابي قصیدې له دغو جملو څخه دي.

## غزل

غزل په لغت کښې د ښځو سره خبرې کول او په اصطلاح کښې پر یوه وزن او قافیه پابندي یو څو بیتونه دي چې له عاشقانه مضامینو څخه وي او په هغه کښې د معشوقې د جمال او د عاشق د احوال تصویر پکښې شوی وي او لکه قصیده د مطلع مصرعه یې د قافیې په حرف سره موافق وي او ویل کیږي چې د غزل بیتونه د ٧ څخه تر ٢١ پورې وي او سیږی هغه ته تغزل ویل کیږي.

## مسمط

لغوي معنی یې یوه نوعه قلاوه او د نظم تار دی په اصطلاح کښې د یوې قصیدې د هم وزنو ابیاتو دسته

(نور په ٩ مخ کښې)

د م، ناصر (نصرت) ژباړه:

# په ټولنه کي محبوبیت

څرنګه کېدلای شي چې يو سړی په اجتماع کښې محبوب واقع او کومه لار غوره کړي چې له هر ډول خلکو سره ګډ ژوند وکړي؟ په خلکو کښې محبوبيت او د اجتماع په ښوونده غولي کښې لار موندل

چې هر سړی غواړي په دغسې لويه او سخته لار کښې د مخه سي يو خاص ډول (هوښ) يعنې (فکر) غواړي چې د رواشناسي پوهان ئې (اجتماعي فکر) بولي، دغه نوی

تعبير د دې عصر رواشناسي له ابتکاراتو څخه دی څکه تر دې د مخه ډېر لږ ايدل شوي دي چې پوهانو او ليکوالو دي له دغه تعبير څخه کار اخستی وي.

ښايي چې يو څو کلمې لکه ذوق، چالاکي او پوهه تر يوې اندازې د «اجتماعي هوښ» په معنی کښې شاملې وي. ليکن د رواشناسي نوي بحثونه د دغه

تازه تعبيرونه د يو خاص مفهوم حکايت نه کوي.

د (هوښ) د کلمې يوازې مقصد په علمي او عقلي مسايلو لکه رياضيات، طبيعيات، قانون، طب

سياست، اقتصاد او نورو کښې ذهني قدرت دی ليکن (اجتماعي هوښ) يو امتياز دی چې هر څوک ئې ولري اجتماعي محبوبيت پيدا کوي او په آسانۍ سره په هر مجلس کښې لار موندلای شي، او توانی سعی کوي چې هر کله هغه

وځانته او ځان وهغه ته نژدې کړي، څو د هغه له نامه، نښان، ذوق او چالاکي څخه استفاده وکړي او په اصطلاح په حاضر بدو سره ئې خوند واخلي.

څرنګه چې د ذهني هوښ او اجتماعي ترمنځ توپير شته يعنې ښايي چې يو سړی دې ذهني هوښ ولري او له اجتماعي هوښ څخه دې بې برخې وي. او د اجتماعي هوښ څښتن دې له ذهني هوښ څخه خلاص وي او حتی امکان لري چې يو

بې هوښ څښتن وي د ادې دليله يو مثال راوړو چې مطلب په ښه توګه درک شي.

يو سړي تقريباً خپل لس تنه دوستان او ملګري د يو مجلس د پاره غوښتي وه دغه په جملې څخه يو نفر ډېری نوميدی چې د حقوقو په شق کښې ئې تحصيل کړی او ښه صحبت ئې کاوه په دغه مجلس کښې وويل:

«نن ورځ دا کار مود شوی دی هر څوک چې يو څو پيسې پيدا کړي يو ټکسی موټر وانيسي، کله چې تر يوې يادې مياشتو وروسته خراب، او موټروان ئې هم ځانته وګوري. نو په دغه ګړی يوه سې چې څه بد کار مې کړی، او کشکې مې د دې سودا پر ځای يو بله معامله کړې وای» بيا ئې وويل:

«...، رښتيا دا ده هغو خلکو چې انګليسي ويلی، او يا څو ورځې ئې په امريکا او انګلستان کښې تيرې کړي دي خورا مغرور او له ځانه خوښ دي، هغوی باید په يو عالم استغنا پيپ وکاږي او د خبرو په دوره جمله کښې ئې يوه يا دوې کلمې انګليسي ځای شوې وي».

همدا سې ئې پسې زياته کړه چې:

«آباد الیوتوب نه دی چې سړی د ځان او یادونې په وادو باښادي کښې په زرو زرو بې مصرف کړي. څو په دې صورت هغه د خلکو په نظر کښې يو اعتبار او شهرت پيدا، او دې کار لپاره ځان تر پوره لاندې کړي؟»

ډېری پر له پسې دغسې خبري تکرار او د خپلو خبرو په هره برخه کښې ئې پر ډول، ډول خلکو باندې چې فلانی دا کار کړی او فلانی داسې عادت او عقيده لري حملې کولې د ډېری د خبرو په ترځ کښې د کورخاوند بيچاره يو مځ شوی او په دې خوښ و چې په دغه ګړی مځکه وچوی او دې په ننوزي.

څکه چې د کور د خاوند يو ميلمه چې (تورکک) نوميدی او اوږخ ته ئې ناست و، نوی ټکسی ئې رانيولی او بل ميلمه ئې چې (تورکک) نوميدی او د ډېری پر مخامخ ناست و څو کاله ئې په انګلستان کښې تير کړي او د انګليسي ژبې زيات شايق هم و، خو بد بختانه پيپ ئې هم څکاوه، بل ميلمه ئې (سيد کک) نامی چې څه يو خ سړی و، يوه مياشت د مخه ئې د خپل زوی د واده د پاره په يو لوی هوټل کښې د خوشحالی

مجلس جوړ کړي ؤ. د غو د دوسرو خلکو د زمري وخبرو ته په خوندا قهر او نفرت سره غوږ ونه نيولى ده زمري په خپلو ابلهو خبرو کښې هغه نيشونه چې هغو خلکو ته ورجګوله ډېر ناوړه کار، او بلکه د کوردخاوند د شرمندګۍ سبب هم ؤ ښايي چې زمري دې رشتيا ويلي او انتقاد دې هم پر ځاى ؤ، ليکن بايد فکر ئې کړى واى. ځرنګه چې هلته ئې د مجلس د ټولو خلکو سره بوره آشنائي نه درلوده نو ته بايد چې د خپلو خبرو نيشو نه ئې د حاضرينو پر زړه وچکړ، او هم ئې د کور خاوند نه واى خجله کړى.

ددې دباره چې زمري يو سړى په ناحقه له ځانه نه زهير ولاى بايد په خپلو خبرو کښې محتاط او هم ئې څوک هدف نه واقع کولاى يعنې د خلکو په باره کښې ئې په خلاصه خوله تبصره نه کولاى.

زمري کولاى شواى چې په هغه لس نفري ټولنه کښې ئې د ځان دپاره ډېر ښه دوستان پيدا کړي واى. په دې شرط چې خبري ئې ځاته نه د اوجع کېدلاى بې دريغه او نافهمه نه ګڼېدلاى. د خپلو خبرو د باره ئې موقع او د حاضرينو سابقه په نظر کښې نيولى. په غير مستقيم صورت ئې د مجلس خلک نه سپکولاى.

ځرنګه چې زمري په هغه بې احتياطۍ او نافهمۍ سره چې ده په خپلو خبرو کښې کارولې وا خيست نه يوازې دا چې د مجلس له خلکو څخه ئې څوک د ځان د دوستۍ لپاره جلب نه کړه بلکه دوه، درې کسه ئې د ځان دښمنان هم کړل، او بله دا چې د کورخاوند که څه هم ئې صميمي دوست ؤ دې ته وادار کړى او له ځانه سره ئې عهد وکړ چې زمري به بيا د غسې مجلسو ته نه ور غواړي.

ښکاره ده چې زمري که څه هم ئې تحصيل کړى، د معلوماتو څښتن او د ذهني پوهې لرونکى ؤ خو بيا هم ئې د غه نقص او لوى عيب درلود چې په اجتماعي ژوند کښې نا وارد او د معاشرت د آدابو له استعداد څخه خلاص ؤ. ځکه د ذهني استعداد او قابليت سره اجتماعي پوهه هم لازمه ده، او وختى چې څوک له دې پوهې څخه بې نصيبه شو په خپل کار او پيشه کښې چې هر څومره باخبره او متخصص وي بيا هم په جامعه کښې محبوبيت نه شي موندلاى.

د مدې نمونې له مخې کولاى شو چې په خپل ژوند او شا وخوا کې نور هم د غسې خلک ومومو، که څه هم په خلکو کښې د دغه عيب معلومول ښکاره وي خو بايد د لقمان په قول له هغو څخه ادب زده کړه شي. ليکن بې ځايه نه ده چې دې څو لنډو په زړه پورې لارښوونو ته چې د روانشناسانو د اجتماعي پوهې د تقويې لپاره يادې کړې دي ښه توجه وکړه سي:

۱- هر کله چې يو داسې مجلس ته چې هلته ډول، ډول آشنا او نا آشنا خلک حاضر وي ورسې، د هغو خبرو ته ډېر متوجه، او په خپله لږ خبرې کوئ. ځکه ماهر خبرې کوونکى ماهر اوريدونکى هم دى.

۲- د خلکو حالت، حرکات او خبرې تر ډېر دقت او مطالعې لاندې نيسى او خاص بيا متوجه سى چې حاضر کسان د خلکو په باره کښې څه قضاوت کوي يعنې د هغو خلکو قضاوت په خپله د هغو خلکو له شخصيت سره برتله، وينا او کردار ئې اندازه کړى.

د خلکو د حالاتو په باب مطالعه او څېړنه ښايي چې د کتاب تر مطالعې ګټوره وي. ځکه د کتاب مطالعه ښايي ذهني هوش زيات کړي ليکن اجتماعي هوش چې د اجتماعي ژوند په درلود ډېر خوري په هغه سره لاس ته راځي پاکه په اجتماع کښې د خلکو سره په ګډون او ديوالى سره پيدا کېږي.

۳- هر ځاى او يا مجلس ته چې ورسى په وعظ رول مه لوبوى ځکه اوس خلک له هغه چا څخه چې په هر وخت او هر ځاى کښې غواړي چې ځان د نورو ښوونکى کړي ښه نه وړي.

۴- په هر مجلس، ځاى او ټولنه کښې چې پاست له هغو وينا وڅخه چې د حاضرينو د دوستانو او ملګرو طبيعت په خرابېږي بېزاره اوسى او کوښښ وکړى چې ستاسې له خوا په مستقيم او غير مستقيم صورت د حاضرينو د يو نفر د عزت او کرامت حس لګه داره نه سي.

۵- که وغواړى چې د مجلس له ټولو خلکو سره په تماس کښې سى لومړى خو ښه داده چې يو څه پخوانى آشنايي موجوده او روحيات ئې در معلوم وي. که داسې نه وي نو په خبرو او صحبت کښې ډېر دقت او احتياط په کار دى. (پاتې په ۱۱ مخ کې)

قیام الدین «کشاف»:

له کابل راډیو نه:

# ملي احساسات

څنګه چې قولنه د افرادو نه تشکیلېږي د قولني مادي او معنوي مفاد هم د هغې د افرادو په خدمت او ذیار ګاللو پورې اړه لري که چېرې د یو ټولني قول افراد په هر کار او وظیفه چې بوخت وي د خپلې مادي او معنوي ګټې تر څنګ د قولني مادي او معنوي ښېګڼې او عمومي مصالح په نظر کښې ولري او له هر فرد سره دا مفکوره موجوده شي چې د فرد شخصي مفاد باید د اجتماعي مفادو په ضمن کښې لاس ته راشي.

نو بدې کښې هیڅ شک نشته چې د هغې قولني اقتصادي، اجتماعي او سیاسي اوضاع به ډېر ژر ورځ په ورځ، هم داز نیمګړتیاوې به ئې بشپړې او د لوړتیا پړاوونه به ډېر ژر ووهي او که فرضاً هر څوک د ژوندانه په هلو ځلو کښې خپل شخصي مفاد منظور ولري او بلکې خپل مفاد د قولني په امان کښې وانهوي، د قولني د رشد او تکامل مفکورې ته په خپل مغز کښې ځای ورنه کړي، نو د هغې قولني لوړتیا او پرمختګ یو غیر ممکن کار دی.

په قولنه کښې د صداقت، امانت، انصاف، ښې روېې، ایثار، اتفاق، مرستې پاکۍ، اخلاص، ورورګلوۍ او نورو ښو خصلتونو تعمیم د قولنې د پرمختګ زمینه برابروي او برعکس د دروغ ویلو، خیانت، قګۍ، بدې روېې کولو نفاق، خودخواهۍ، بدبینۍ، بخل، ناپاکۍ، بې مروتۍ او نورو هغو افعالو تعمیم چې انسانیت او اسلام کرکه ځنې کوي د قولنې د پرمختګ لوی خنډونه شمېرل کېږي.

نو پدغه اساس د قولني هر فرد ته دا په کار ده چې اجتماعي مفکوره او د ملیت نو ده مینه په ځان کښې وروزي، خپل خیر او ښېګڼه د نورو په خیر او ښېګڼه کښې وغواړي د نورو د آرامۍ او سوکالۍ د وسایلو په برابرولو پسې د همت په کمر بند ملا وتړي، د قولنې د واقعي خدمتګارانو په صف کښې ودرېږي د (خیر الناس من ینفع الناس) په تقاضا خلکو ته ګټه ورسوي، انفرادي مفکوره له دماغ نه وباسي.

که مامور وي باید له خپل ماموریت څخه یوازې خپله آرامي او د معاش پیسې سود ونه ګڼي بلکې د خپل خدای، د خپل وطن او د خپل پاچا او خپلې قولنې سره په هغه شان چې د انسانیت او اسلام تقاضا ده قینګه رابطه وساتي. له رشوت

اختلاس، خیانت، عوام فریبې، دروغ ویلو، ناپاکۍ او له هر راز ناوړو چارو او کړنو نه او اعمالو څخه ځان وژغوري، عفت او پاکۍ، ایمانداري، صداقت اخلاص او مروت له خپلو وجداني وظایفو څخه وګڼي.

که چېرې د کام او ولس سپین ږیري وي او په ولسي چارو کښې د خلکو د اعتماد مورد وي باید د کور او کلي، کام او ولس ترمنځ داسې رویه وکړي چې د هغوی د اتفاق، اتحاد او دوستۍ مزې

قینګ شي، د ګډې همکارۍ او اسلامي ورورګلوۍ روحیه تازه او ژوندۍ شي یو د بل تکلیف ته د پوره صمیمیت په فضا کښې د

مرستې او ښه ورکړې په هوسا ئې ئې خوشاله او په درد ئې دردمن شي نو ټول هڅه وکړي چې د خلکو کورني جنجالونه او شخړې په سوله مینو توصیو له منځه یوسي نه داسې چې د خپل مشرتوب څخه

ناوړه استفاده وکړي د کور او کلي، کام او ولس ترمنځ د نفاق او بدبینۍ تخم وشیندي، د چغلي

او دوکه ماري په وسیله د هغوی شپې او ورځې ترخې او ذات البیني علایق ئې سره وشلوي چې په نتیجه کښې د کور او کلي خلک یو د بل وینو ته انتظار او یو بل ته د دښمن په سترګه وګوري.

که چېرې تجار یا دکاندار وي باید خپلې شومې سترګې د اخیستونکو مالونو ته په ناروا بڼې نه کړي خپل مال او متاع بداسې مروجه او مشروع بیه

خرڅه کړي چې له یوې خوا نه پخپله ده ته پکښې ګټه وي او له بلې خوا نه د اخیستونکو مال

د خارجي منابعــو څخه :　　　　　　　　د عبدالصمد نصر خواږ باړه :

# په فرانسه کښې تعلیم او تربیه

فرانسه هغه دولت دی چې له ډیرو پخوانیو وختو څخه ئې د تعلیم او تربیې په برخه کښې اقدام کړی او د هغه د تعمیم لپاره ئې پوره هڅه کړې ده، هغه وخت چې

پوهنه، کمال او د تحصیل مشغولیت په کلیساؤ پورې تړلو ده د لومړي ځل د پاره ئې په ۱۲۵۳ ع کال کې

یو عمومي کالج Robertde-saron په نامه جوړ او منځته راوړ چې دغه اقدام د فرانسې د نامتو پوهنتون

Sorbonne بنا په او اساس وبلل شو په ۱۷۹۱ کال کښې د مدارس د دریم فرمان په اثر د مکتب ټول وګړو ته د آزاد تحصیل حق ورکړه شو او په ۱۸۰۸ کال کښې د مدارس

د اوه لسم فرمان له مخې سلطنتي پوهنتون پرانستل شو او دغه پوهنتون د ناپلیون بناپارت په وسیله ډیر وسعت وموند او د پوهنتونی په برخه کښې ئې په نقش ولوباوه

څو په ۱۸۸۰ کال کښې د مملکت ټولو نجونو ته هم د تعلیم کولو حق ورکړه شو او وروسته په ۱۸۸۲ کښې ابتدائي ښوونه وړیا او اجباري اعلان شوه او د دغو

تحولاتو په نتیجه کښې د فرانسې د بیسوادو وګړو شمیر په سلو کې شل تنو ته ورسید څو په ۱۹۱۰ کال

کښې د دغه شمیر ډیر کم شو او یوازې په سلو کښې څلور تنه بې سواده

باته شوه په تیرو کلو کښې د فرانسې اجباري ښوونه د ۶ کلنې څخه تر ۱۴ کلنۍ پورې وه خو په ۱۹۶۷ کال کښې څېړنې پلانونه جوړ وطرحه شول چې دهغه له مخې اجباري ښوونه تر ۱۶ کلنۍ پورې شوه په فرانسه کښې د

لومړي دوري د تحصیلاتو موده پنځه کاله ده نو هغه کسان چې تر ۱۶ کالو پورې خپل تحصیل ته دوام نه ورکوي او پاتې نسي ورکولای د هغو لپاره د لنډې مودې چانسونه هم سته چې د

ښوونې په ضمن کښې څېړنې کسبي او فني ښوونې هم ورته کیږي .

## نوی ښوونځی :

فرانسه لومړی دولت دی چې د دوهمې عمومي جګړې وروسته ئې خپل تعلیماتي پروګرامونه نوی کړل تر پنځو کالو مطالعې او بررسي وروسته ئې په ۱۹۵۲ کال د نوي مکتوب په ټولګیو کې د Pilotes په نامه نوي ټولګي تأسیس

کړل چې تراوسه پورې څو ځله دغو پروګرامونو هم د نوي ایجاباتو له مخې تغیر موندلی دی حتی په اوسنیو وختونو کښې د وروستنیو تحصیلاتو لپاره د وروستنیو تغیراتو له امله کتاب وجود نه لري .

## ملي ښوونځی :

د نورو د راز راز اقداماتو په ضمن کښې د ۱۹۵۹ کال د دسامبر په ۳۱ د ملي ښوونځیو لپاره یو قانون جوړ شو چې د هغه له مخه ټول ملي ښوونځي د دولت د اعانې او کومک څخه د خاصو شرایطو

په اثر برخه اخلي او دغو ټولو ښوونځیو ته د دولت له خوا په مرتب او منظم ډول رسیدګي کیږي باید وویل شي چې د فرانسې د پوهنې وزارت پنځه سوه زره غړي لري

خو د ټولو ښوونځیو د تعلیماتو نګراني او څارنه ۶۰ لایقو تنو ته اړتیا لري چې دغه ۶۰ تنه په کال

کښې دوه ځله باید بلا په منظم او مستقیم ډول د ټولو ښوونځیو د ښوونې پروګرامونه تر څېړلې

یا ملاړنی لاندې راولي دغه کسان چې په څېړله د پوهنې د وزیر له خوا د معینو شرایطو په اساس انتخابیږي د نورو هغو ښوونکو له ډلې څخه دي چې د وی ډیر محبوبیت او شهرت

لري او هم د ښه نظر او سلیقې خاوندان ئې د دوی څارنه چې د مملکت د ۹۱ ولایتو په ښوونځیو کښې کیږي د نتیجو اختلاو په ضمن کښې د نوي پروګرامونو

په طرحه کولو او تدریس د نوی روشونو په غوره کولو کښې هم برخه اخلي او خپلې نظر یې څرګندوي .

## ازموینې :

د فرانسې د لومړنیو او متوسطه ښوونځیو په ټولګیو کې د ازموینې طرز زموږ د ښوونځیو ازموینو په څیر نه دی هلته تحریري ازموینه تقریباً له منځه تللې ده

دښوونکو او مکتب دښوونکو دښوونې نظر په دهلکانو په نمرو کښې ډېر مؤثره ده او يا هغو نمرو ته اهميت ورکول کېږي چې هلکان د يوه تعليمي کال په ترڅ کې اخستي وي، خو يو هلک دمخه تر دې چې د مکتب دوره پای ته ورسوي د دوو وروستنيو کلونو آزموينه ئې د پوهنتون د پروګرام سره سم د پوهنې د وزارت د مستقيمې څارنې لاندې بشپړه کېږي مګر د دا ډول آزموينو په برخه کښې هم نوې څېړنې روانې دي .

## دښوونکي روزنه :

فرانسه چې ۱۹ ولايتونه لري په هر ولايت کښې ئې د هلکانو او نجونو لپاره تربيتي مقدماتي کورسونه جوړ شوي دي او د دغو کورسونو د مسابقې په ډول هغه کسان چې لږ تر لږه ئې مکتب څلور کلنې دوره تېره کړې وي او يا څه عمومي معلومات ولري شاملېدلای شي د کورسو دوره درې، څلور او پنځه کاله ده چې دا البته د ښوونکي د تحصيل په درجه او ميزان اړه لري مګر د دغو کورسو په دوو وروستيو کلونو کښې يوازې د ښوونې او تربيې مواد و تدريس کېږي هغه ښوونکي چې تربيا د ربانديکلیو ته استول کېږي هغوی د کليو د مشرانو سره د کليو په ټولو چارو کښې يوه مرسته کوي او هر وخت د دغو ښوونکو ته د لوړو تحصيلاتو چانس هم سته او کولای شي چې د څو کاله په موده کښې خپل تحصيلات د پوهنځي حتی تر هغه په لوړه سويه وکړي نن ورځ په فرانسه کښې په سلو کې پنځه ويشت د لوړو او عالي تحصيلاتو خاوندان دي او دغه کسان د ځينو مخصوصو امتيازاتو څښتنان او د ۱۸ ساعتو څخه په هفته ۱۵ ساعته تدريس کوي

د فرانسې عالي ليليه کورس چه په ۱۷۹٤ ع کال کښې د ښوونکو د روزنې لپاره تأسيس شوېدی دوې علمي څانګې لري چې هره څانګه ئې په کال کښې ٤٥ تنه د مسابقې په ډول منې .

په فرانسه کښې پر دغو مدرسو سربېره نورې مخصوصې مدرسې هم شته چې د تدريس پخپلو چالبو طرزونو سره د باته کوچنيانو ګنګو او ړندو په روزلو کښې مهمه برخه لري .

## بدني روزنه:

په فرانسه کښې بدني روزنې ډېر اهميت لري په تېرو کلو کښې د هلکانو ورزش په صنفي ښوونکي اړه درلوده خو اوس د دغه کار لپاره مخصوص ښوونکي روزل کېږي چې د هغو په وسيله بدني روزنه سرته رسېږي ، که څه هم ورزش او سپورټ آزموينې په ښوونځي کښې اختياري شکل لري خو د بکلوريا په دوره کښې په اجباري ډول دي ځکه چې په دې وروستنيو کلونو کښې سپورټ ته ډېره پاملرنه شوې ده نو ځکه ورزشي مؤسسې ډېره پراختيا موندلې ده حتی بدني روزنه د فکري روزنې په شان پرمخ روانه ده .

په فرانسه کښې بې له دغو مدرسو نه نور تربيتي کلپونه او مؤسسې هم شته چې د ځوانانو په ښوونه او تربيتي چارو کښې يوه اهميت لري .

(٦٥ مخ پاته)

## ملي احساسات

بې ځايه ولاړ نشي نه داسې چې دکاندار په خپل مال په ناحقه قسم وخوري، زړې متاع د نوي متاع په بدل تېره کړي هغه هم يا په تله کښې او يا په ګز کښې چم وکړي چې په دغه صورت دغه راز دکانداران د هغو کيسه برانو چه په لويه ورځ تېره چاړه ور سره وي او د مسلمانانو له جيبونو څخه د هغوی پيسې په بې رحمانه ډول د اختلاس په توګه وړي هيڅ کم نه دي که چېرې د طب ډاکټر او يا متخصص وي هغه بايد د خپل مادي مفاد په څنګ کښې خپل معنوي مفاد هم په نظر کښې ولري هغه دا چې د ناروغانو د روغتيا او صحت موندلو لپاره خپل ټول کوښښ او وسه په کار واچوي د يوه ايمانداري او صداقت له مخې د ټولنې د ناروغانو خدمت وکړي نه دا چې د هغوی پيسې د فيس شکرانې او .... په بانه واخلي او سره له دې هم د هغوی په ژوند باندې لوبې وکړي او هيڅ د يو انسان د حيات په ارزښت نه وي قايل .

که چېرې معلم وي هغه بايد د ښوونکي لوړ مقام او چت حيثيت ، ديني او اجتماعي ارزښتونو په مراعات کولو سره د ټولنې اولاد چې د سبا لويان دي د وخت له تقاضا سره سم داسې وروزي چې له يوې خوا نه ديني شعايرو او مذهبي معتقداتو ته او له بلې خوا نه خپلو ملي او اجتماعي نواميسو ته په درنه سترګه وګوري نه داسې چې د هغوی له اخلاقو او اعمالو څخه ناخبره وي او يوازې روزګذرانې غنيمت کړي .

خو انځوره دا چې که چېرې د دغه دوو مثبتو او منفي اړخونو له جملې څخه چې د هر انسان په ژوند کښې موجود دي مثبت اړخ په کار واچول شي او هر و په ټولنه د ترقۍ له کاروان سره يو ځای شي او که چېرې منفي جنبه تعميم شي نو د ټولنې لوړتيا محاله خبره ده .

سردار محمد «زهیر»:

# روحي اضطراب
## او د هغه علاج

خپلوان، دوستان، علاقه‌مندان او شناخته ګان کله چي یو د بله سره وویني او یا یو ځای سي ددې دپاره چي د دوی تر منځ خپلوي، دوستي، شناخت او تعلق نه تر ا ټینګ او یو تر بله ئې مینه او محبت زیات شي، یو د بل د حال او احوال پوښتنه سره کوي.

په داسي حال کښي چي هغه یو به میل د خندا ورته تللی وي، دهغه بل به تر ستر ګو دا وښکو داې بهیږی یا به یو هم ګریاني ورته کوي او هغه بل به هم د غم رباب ورته کوك کړی وي.

داسي هم پېښېږي چي یو دی هم د خوښي او خوشحالي بیان کوي او بل دی هم د خپل رضائیت او ښې ورځي اظهار کوي خو دېر و کسانو څخه چي پوښتنه وکی زیاتره د ژړه په دوك اخته او د هری خوا او له هره یا بته یو لړ شکایتونه بیانوي.

دچادا ډول شکایتونه یو واقعي شکل لري خو د چا هغې صرف ددې دپاره چي د خپرو یو مضمون برابر او جوړ شي د هر یخوا چي وی مطلب څکی رژوی یا څکی نه اچوی خو دده په خیال او دده په فکر چي هر کار او هر شي و یجاړ او خراب په نظر ورځي په دغه باب کښي نظریات څر ګندوي.

یا پخپله د سړی د خپله ځانه سره فکر او چرت مردار او خراب، دی موجوده حالت او یا د اتلونکی زمانه او یا خپل حال او احوال او یادونرو دهغې په اضطراب په ډك او بر ؤ پیمانه بولي دا ډول روحي اضطراب او پریشانی تن او برون خپله ریښه خو دا ډېره ځغلولی او دې مرض ؤ ناجوړیه خو را ډېر خلك په سرنیولی دي.

د بله طرفه له دې ناجوړی او ناسازی یعنی لدې روحي اضطراب او پریشانی څخه خلاصیده هم یو اسانه کار نه دی او دا یوه کله یو سر او یو ماغزه او ککری ځواځي



د مضمون لیکونکی

چي له داسو واقعي او یا غیر واقعي اضطرا باتو څخه دې سړی ځان خلاص کړی.

صبر، حوصله، ټینګار او استقامت داغلی دی، اما ددې شیانو کاسې خودا دانې او د هرچا دلاسه نه ده پوره چي دا کاسې دې پوره کی او یادی تر ځایه ورسوی مګر د صبر، حوصلې او استقامت ددانو کاسو پوره

(د ۳ مخ باته)

### شعر څه شي ....

دسته کول دی پدې طرز چي آخری مصرعه ئې په قافیه کښي سره موافقه وي او د هری دستې نوری مصرعې په قافیه کښي سره موافقې او د آخری مصرعې سره مخالفه وي لکه دمنوچهر مسمطات چي مشهور دی.

### ترجیع بند، ترکیب بند

ترجیع بند داسي دی چي یوه قصیده پرځو قطعو یاندی وویشي چي ټوله په وزن سره متفقي او قوافي کښي مختلفې وي او هری قطعې ته شعرا کور (خانه) وائی او دهر و دوو خانو ترمنځ چي فاصله پیدا کیږی دفه ځای دپاره علیحده مفرد بیت جوړ کاندي چي دغه بیت ته ترجیع بند ویل کیږی، بیانو دشاعر خوښه ده چي دغه بیت دټولو خانو دپاره ترجیح بند ټاکي او که دهری خانې دپاره جلاجلا ترجیع بند جوړوي. که چیری شعر د قصیدې په فواصلو کښي مکرر داسي باقي اقسامو ته ترکیب بند ویل کیږی لکه: د جمال الدین اصفهاني، خاقاني، سلطان ساوجي او دهاتف ترکیب بندونه.

(نور بیا)

کیده او ترځایه رسیده ځان ته اصول او ترتیب لري چې که هغه په هغه ترتیب بوڅته کړه شي نو بیا ترځایه هم په آسانۍ سره رسیږي.

که موږ تاسې له خپله ځانه سره لږ قدري حساب واخلو او پردې خبره فکر وکړو داچې قانون داسې راغلی دی چې هر شی

په اضدادو سره پیژندل کیږي یعنې که شپه نه وای نو ورځ به چا نه پیژندله او که ناجوړي نه وای نو صحت درك به چا ته نه وای

معلوم، او که غم نه وای په ښادي به څوك نه پوهیدلای له دې قسمه نور او نور شیان نو ددې دپاره چې په دنیا کښې آبادي او تعمیر

راسي د دغه آبادۍ او تعمیر یو اساسي رکن خرابي بلل کیږي یعنې ترڅو څو یو شی یوازې خراب نسي بیا آبادیدای هم نسي

بلکې آبادي او تعمیر وهغه شي ته راځي چې هغه خراب او ویجاړ دی نو که یو شی خراب او ویجاړ نه وي د دغه تعمیر او ودانۍ هم نسي راتلای.

نو لکه د دنیا ژوند او یا دنیا چې آبادۍ او تعمیر ته ضرورت لري همدارنګه خرابۍ ته هم احتیاج لري؛ که غواړي چې

صلح او امن دی قایم سي باید یو ار جګړه او بې امني هم جوړه سي همدا وجه ده له هغه تاریخه چې

انسانان پیدا شوي دي بیا تر اوسه پورې ددې دپاره چې آبادي او تعمیر دی راولي تل مدام په جګړه

او بد امنۍ مبتلا دي.

داسې وګورئ موږ تاسې څومره کوښښ او زیار باسو چې په یوه چم د ځان له مرګه خلاص کړو او سره

له دومره ډیره کوښښه بیا هم له مرګه نسوای خلاصیدای او په پای کښې بیا هم مرو.

نه که موږ نه مړه کیدای او دغسې ژوندي ژوندي وای مګر اوس به دغه انسانان د ځمکې پرمخ ځای شوي وای؛ څو څه حال به وای؛ ټولو به بیا هم لکه

د ګور چنجیانو سره خوړلای په دې لحاظ چې د یو شمیر ژوندي په راحت وي د هغه بل شمیر د پاره مرګ راغی ګواکې ددې یو شمیر انسانانو ژوند د هغو نورو

انسانانو پر مرګ باندې موقوف سو همدا قانون په نورو کاینا تو کښې هم جاري ساتل شوي دي، مثلاً په یو ځای کښې ونې او نهالان ایږدو کله چې

نهالان او ونې ولګیدې بیا یې (څڼګه) کړو او بیا به یې یو ځری بوټي ونې نهال لاس ؤښې او ښاخونه اره کوو کله چې په دغه ترتیب خرابي پکښې راولو د هغه آبادي پر موقوفه سي.

دا نه که تاسې ما ته لاس رانه چوي او پر سرمې ونه ټکوي ښایي زه دي ووبلای سم چې انساني ژوند څنګه لکه اجتماعي ښېګڼو او ښو اخلاقو ته چې

احتیاج لري، همدا راز ټولو مفاسدو او بد اخلاقیو ته هم ضرورت لري او که یې ضرورت نه درلودای نو بیا څه لازمه وه چې دغه بد اخلاقي منځ ته راتلله.

خو دغه بد اخلاقي ته ضرورت ددې خبرې موجب سوه چې بخپله بد اخلاقي یې منځ ته راواچوله.

که څه هم په عین حال کښې انسان مکلف دی چې باید تل مدام ښه کار وکي

او د بدو څخه پرهیز وکړي اما بیا هم هغه دی څومره چې ښه کوي بد هم کوي؛ که چیري انسان ملکوتي ژوند اختیار او له یوه مخه له مفاسدو څخه لاس واخلي ګمان

نه کوم چې د نړۍ د ژوند اډه ښه وچلیږي او که پر یوه مخ ټوله ټولو مفاسدو ته ملا وتړي خو بیا بیخي نسي چلیدلای.

دا یې زه نه غواړم چې دا جرئت او اجازه، چا ته ورکړم چې باید د مفاسدو او خیانت کاریو او نورو جرایمو پر کولو لاس او دریغ

ونه کړي بلکې زما تر دې یوه وویل چې یعنې انساني ژوند ددې دپاره چې باید پر یوه انتظام او سرښته وچلیږي د دغه چلاو یو

رکن ویجاړي ده، د دغه اصول له مخې ټول له هغه دردونه، رنځونه غمونه، مصیبتونه که مادي وي که معنوي او یا روحي دا ټول له ددې

دپاره دي چې انسان به ودان سي نو هر درد او هر رنځ او هر ډول زحمت او هر رنګه تکلیف، مشقت او هر قسم روحي اضطراب د

انسان د ژوند اساس او بومبیار دی لوږه، تنده پخپل ذات کښې هم ځان ته یو آفت، غم، درد او مشقت دی مګر که انسان په دغه رنځ

او په دغه مصیبت اخته نسي خو بیا به د هیڅ شي پر خوړلو خوند نه واخستلای سي داچې سړی د یوه شي پر خوړلو خوند اخلي دغه

خوند هغه وخت موجودیدای سي کله چې د ډوډۍ او یا تږی سي نو دغه لوږه او تنده، که څه هم یو

مصیبت او درد او غم او رنج او مشقت دی لیکن په معنی کښې عین نعمت بلل کیږي .

دا چې یو سړی دې او یا تږی سی باید هیڅ افسوس نه سی هم داراز نه باید په ټولو مصائبو او رنځو او تکالیفو او نورو روحي اضطراباتو کښې جلو له لاسه ورکړي ولی چې غیر د لویږی له رنځ او محنته نور ټوله روحي اضطرابات او دردونه او شکایتونه ددې لپاره منځ ته راغلی او راځي چې بر هغه لکه د نس مرتیا او دتندی دفعه کیده دا ډول یوا من او صلحه را پیاخوند او مشکلاتو څوفه ده کله د یو درد او غم او مشقت یا یو زحمت او تکلیف نتیجه په خپله هغه چاته رسیږي چې دی په خپله پخته سوی دی خو کله دا نتیجه له هغه څخه خطا سي او نورو څو کسانو په منتج او فایده من سي .

مثلا لکه یو سړی چې په سوداګری او تجارت کښې ګټه او یا تاوان وکی ، که ګټه وکی دغه ګټه هغه وخت کولای شي چې نورو ته په تاوان کی سی او کله چې دی تاوان وکی دغه ده تاوان د نورو د ګټي او نفعي سبب ګرزي په دغه ځای کښې دا نسان د باره یو اجتماعي او دورور ګلویه او انساني روبي حس په کار دی هغه دا چې که ما تاوان وکی پروا نه لري هغه بل ګټه وکړه او دا ګټه د هغه بل سړی په کور کي باته سوه او دا ګټه چې موږ غواړو کوددې لپاره چې د تاوان او نقصان په هوش کښې ئې ودکړو چې زموږ دغه تاوان او نقصان بیا د نورو په ګټه تمامیږي تاوان او نقصان یوازې دا نه باید وبلل سی چې مال تر اصلي سر خریډ ارزان نه ولاړ شي بلکه ټول هغه مصارف چې یو سړی ئې دژوند د کولو دپاره کوي هغه ټول د حساب دقانون په اساس د ضرر او نقصان په جمع کښې نیول کیږي .

چې په واقع کښې زموږ په دغسې نقصان او ضرر د بل سړی کور ودانیږي .

تر دغه کوچنی نقصان او تاوان څخه چې حد او فاصله ئې لنډه ده او هر سړی په یوهیږي نور دا ډول لوی نقصانونه او تاوانونه موجود دي څخه چې د هغوی حد او فاصله خورا اوږده ده نو موږ نسوای کولای چې د هغه نتیجه دي د سر په سترګو ووینو حال دا دی چې په پای کی هغه هم د یو چا په ګټه او مفاد تمامیږي .

ددې دپاره چې د کلاوې سر را څخه اوږد نه سی او احتمال لري چې موږ دي تر یوې اندازې د ګرانو ویونکو قناعت حاصل کړی وي .

راغلو دې خبری ته چې اوس به نو موږ آیا یو ځای آرام کرار کښینو هر څه چې کیده هغه به کیږي او هره ټکه او هر مصیبت او هر درد او هر غم چې راباندی نازل کیدی را باندی نازل کیږي په ځموږ به د هغو څخه د خلاصون دپاره هیڅ ډول کوښښ نه کوو ؟

په دا سی هم نه ده بلکه انسان مجبور او مکلف دی چې تر خپله وسه پوري په یه فردي او اجتماعي ډول د هر ډول مادي او روحي اضطراب په مقابل کښې په تمامه معنی ځان وساتي او د هر ډول وسایلو او وسایطو څخه په کار اخلي .

کله چې دده په قوت او دده په قدرت کیده کیږي په مګر کله چې تر طاقت او قوت تیره سوه نو بیا څه رنګه لکه چې موږ د مخه تردې ووېل کوم اضطراب چې د طبیعی قانون له مخې راتلونکی وي او لکه د طوفان او یا یو سیلاب مخه چې نه نیول کیده نو نه به نیول کیږي په دې وخت کی باید دا نسان فکر ددغه طبیعی قانون اساس ته عطف او چار و نا چار په تمامه او کامله معنی او حوصله ځان هغه طوفان ته په ډاډه زړه وسپاري . (پای)

(د ٥ مخ پاته)

## په ټولنه کښې ...

٦ـ په اجتماعي چارو کښې د خلکو عقیدی محترمې شمیري که څه هم ستاسو د عقیدې مخالفې وي .

٧ـ د مجلس نزیاتره ملګري که په یو مناسبت وخاندي او تاسي ته خندا نه در تله په هر ډول چه وي لږ او ډیر ئې ملګري کوي ، او که

چیري ئې د یو شي تعریف ، یا د چا ستاینه شروع کړه په هغه کښې هم اشتراک ورسره کوي لیکن له مبالغې او ډیر وخبرو کولو څخه بېزاره اوسي .

٨ـ ستاسي ناسته ، ولاړه ، فقط ستاسو په رنګ خلکو پوري محدوده نه وي یعنی له هغو کسانو سره چه صفتونه ئې نسبت و تاسي ته ټو ټیر لري هم ناسته ولاړه ورسره اختیار کړي .

٩ـ که څوک تاسو ته د خپلو رازو د ساتلو توصیه وکړي ځای چه د یو امانت په شـوګه ئې وساتي

ځکه که مو د چـاراز و نه ساته د خلکو اعتمـا ددر با ندي سلبیږي

١٠ـ ډا بده نه ده چه په یوه اندازه کښې خوش طبعه او ټوکی اوسي لیکن سعي وکړي چه په

چو کاټ کښې وي او هم د شوخي او ټـو کـو موضوع موښکاده خلک او کسان نه وي .

د خارجي مطبوعاتو نه:

د ایوبسزي ژباړه :

# د ژبې اختلاف

## دیوه لغت په ترجمه کښې اشتباه څه ډول د دولکو تنو د وژلو باعث وګرزید ؟

د جاپان مشرانو چې د هیرو شیما د ناوړې پېښې څو میاشتې د مخه د دغې واقعې اټکل کاوه، چې په دوهمې جهاني جګړه کښې به ماتشي تل د سولې د پیشنهاد د پاره د یوه مناسب فرصت په تلاش کې وه.

د ۱۹۴۵ کال د جولایې په کښې د «پوتسدام» اعلامیه په دغه صورت کښې چې جاپان تسلیم شوی نه وای ددې دلیل ؤ چه د متفقینو له خوا هغه هیواد محاصره شي جاپان مناسب موقع وموندله چې جګړه بریږدی.

د جاپان دهغه وخت صدراعظم او کابینې چې میل ئې نه درلود چه اعلامیه رد کړي، په دغه پکله ئې په مطالعه پیل وکړ، خو سمدستي د تصمیم نیول ورته ډیر سخت کار ؤ،

د بلې خوا د جاپان مطبوعاتو او خلکو ټینګار کاوه چې د دغه هیواد کابینه دې بې له تعلل څخه خپله نظر په ښکاره کړي، په پای کې دهغه وخت صدراعظم «سوزکي» د تودې دفشار په مقابل کښې چې ورباندې راتاوه وو بل چې په دغه باب ددې حکومت د (موکوساتو) سیاست غوره کړی دی.

د موکوساتو کلمه نه یوازې په انګلیسي ژبه کښې د یوده برابرې معنې نه درکوي بلکه د جاپان په ژبه کښې هم دوه ابهام خیز او مبهم په معنې داخلې دي او په دې معنی چې هم امکان لري د عقیدې په اظهار نه کولو او هم اعتنې نه کولو او بې اهمیته شمیرلو ترجمه شي.

البته د صدراعظم مقصد داؤ چې کابینې په دغه شکله قاطع تصمیم نه دی نیولی، خو د جاپان جربده ددغې کلمې څخه دوهمه معنی چې توجه نه کول او بې اعتنائي څخه مراددي واخستله او دغې خبر ئې ټوله نړۍ ته مخابره کړه، تردغې تبصرې څو ورځې وروسته پر هیروشیما او ناګاساکي باندې اټومي بمبونه واچول شوه او دوهمې لوئې جګړې ډیر فاجعه ئې منځ ته راوړه.

دغه حقیقت د جاپان د (نی یون ټایمز) دوره خپلې بخوا ني چلوونکي کاسیوسکاوي ښکاره کړه او دغه پیښه ښکاره کړه دی چې د ژبې اختلاف او د الفاظو تعدد څومره اهمیت لري او د بین المللي تفاهم د منځ ته راتلو په لار کې څه ډول اغیزه کولای شي او د شلم قرن انسان سره ددې پر علمي او صنعتي پرمختګونو سیاهم دهغه په حل کولو بریالی شوی نه دی.

د ملګرو ملتو په مؤسسه کښې هره رسمي بیانیه باید په پنځو بیلو ژبو ترجمه شي (پر ته له نورو غیر رسمي ژبو څخه) او داکار په خپله د دغې مؤسسې په اداري جریان کې ستنې دا ولی، یوسلو څلو یښت تنه ۴۰۰ ساعته کار کوي څو چې یو ساعته یوه انګلیسي، فرانسوي، اسپانوي روسي او چینې بیانیه ترجمه کړي، ددې تنه هریو باید شپږ ساعته کار وکړي څو چې یوه انګلیسي بیانیه په روسي ژبه واړوي او یو ژباړونکی باید د یرش ساعته وګالي چې هغه بیانیه په چینې ژبه ترجمه کړي.

د ۲۰ ملیونو کلمو ترجمې لپاره چې د یوې هفتې په موده کښې د ملګرو ملتو په مؤسسه کښې خبرې پر شوې دي په پنځو بیلو بیلو ژبو یوازې یو ملیون پاڼې کاغذونو ته اړتیا لري.

د غه مؤسسه یو له هغو زرګونو مؤسسو څخه ده چې په نړۍ کښې هر کال زیات لګښتونه یوازې د ترجمې لپاره ایجابوي، څرګنده ده چې د مهمو علمي، تجارتي، سیاسي، تربیوي او نورو مناېعو څخه چې په نړۍ کې په بیلو بیلو ژبو کښې شته یوازې هغه کسان استفاده کوي چې د نړۍ په اصلي او مهمو

ژبو پوهېږي او نور کسان د هغو څخه ګټه نشي اخستلای.

هغو کسانو چې خارجي هېوادونو ته سفرونه کړي دي په دې پوهېږي چې د ژبې د اختلاف مسأله څومره د تکليف او محروميت وسيله ده، حتی د يوه هېواد د اوسېدونکو د پاره چې په بېلو بېلو سيمو کښې اوسېږي دغه مشکلات د بېلو بېلو ژبو او عليحده لهجو له کبله وجود لري.

نو دغه چې هر څوك په څو خارجي ژبو په پوهېږي ټول خلك ئې احترام کوي خو بايد ووايو چې ددا ډول خلکو شمېر ډېر لږ او کفايت نه کوي، په يوه يا څو خارجي ژبو پوهېدل زيات وخت ډېره مطالعه، تجربه او تمرين غواړي او دا د يوه يا دوو کلونو کار نه دی.

د ملګرو ملتونو د مؤسسې رسمي ترجمان چې ادعا کوي په ٦٦ خارجي ژبو پوهېږي يو استثنائي سړی دی او بيا هم نشو منلی چې هغه دې په دغو ټولو ژبو کښې پوره تبحر ولري حال دا چې په نړۍ کښې اوس په ٣٥٠٠ بېلو بېلو ژبو خبرې کېږي.

په متوسط ډول د ملګرو ملتو د مؤسسې هر ترجمان په دوو ژبو پوهېږي او د هغو معلوماتو او اطلاعاتو لاس ته راوستل د کلونو کوشش او زحمتکښۍ نتيجه ده سربېره پر دې چې د دغو ترجمانانو زيات وخت په ترجمه تېرېږي خپل نور وخت په مطالعه او د ژبې په څېړنه کښې تېروي.

بايد ووايو چې په اوسني لويه نړۍ کښې تر ٨٠٠ يا ٩٠٠ ماهر او تکړه ترجمانانو زيات نشته او دغه لږ کسان به دغه هکله د نړۍ والو مشکلات نشي حل کولای، او د کمپيوټر او ماشيني ترجمې په کار متخصصين او پوهان راضي نه دي او خوش بيني اسره ورته څرګندوي او په دغه لار کښې اساسي مشکلات شته چې بايد حل شي دا څنګه ترجمه دا نه ده چې د يوه لغت پر ځای بل لغت راوړل شي کوم شی چې په دغه کار کښې اهميت لري هغه اصلي مطلب او د هغه ايفاده کول دي.

ډېر وخت به تېر و لو سره چې د دغو تخنيکي دستګاوو په جوړولو او ډ کولو کښې سرته رسېږي بيا هم نشي کولای چې د يوه ژوندي ترجمان کار دې اجرا کړي او کله کله په دغه کار کښې اشتباه هم پېښېږي.

هر څومره وخت چې د ژبې په زده کړه کښې تېر کړو، په هره اندازه زحمت چې د کمپيوترونو او تخنيکي ماشينونو د تکميل په لار کښې و کاږو هر څو نه پيسې چې د تکړه او ماهرو ترجمانانو په زده کړه کښې خرڅې کړو په دغه هکله بيا هم د ټول بشر بې انتها غوښتنې نشي پوره کولای.

په اوسني نړۍ کښې د انسانانو نږدې تماس او د دولتونو او ملتونو تر منځ کړۍ پېچکښې دا ايجابوي چې په يوه ژبه ټول نړۍ وال آشنا شي.

د هغې ورځې څخه چې په دنيا کښې بېلې بېلې ژبې منځ ته راغلي دي، بشر تل په دې فکر ؤ چې د يوې بين المللي ژبې په اختراع کېدو سره د انسان د يو والي او تفاهم د منځ ته راتلو په لار کښې ګام کښېږدي، خو د بده مرغه تر اوسه ئې په دغه هکله کومه صحيحه لاره نه ده پيدا کړې او که کوم اقدام هم شوی دی مثبتې نتيجې ته نه دی رسېدلی.

څو زره کاله د مخه تر مسيح آتوريانو او بابليانو په ټول منځني ختيځ کښې آرامي ژبه د يوې عمومي او ارتباطي ژبې په حيث وټاکله، دا هغه ژبه وه چې حضرت مسيح په هغه خبرې وکړې او د پخواني زماني انجيل په هغه ژبه سره ليکل شوی ؤ او څو پېړۍ تر استفادې لاندې وه او نن هم د منځني ختيځ په سوو زره تنه په هغه ژبه خبرې کوي، وروسته له هغه ژبې چې د عبري او يانورو پردېو ژبو سره ګډه او د يوناني ژبو څخه مرکبه وه، د يونان څخه ايټاليا او له هغه ځای څخه هندوستان ته ورغله او د (ژول سزار) تر زماني پورې د روم په ټوله امپراتورۍ کښې عمومي سياسي او تجارتي ژبه وه، د نوي عصر انجيل او د کليسا ژبه په هغه سره ليکل شوېده، دغه ژبه د مقدوني فرهنګ د تجزيې نه وروسته د منځه ولاړه، او د روم د امپراتورۍ په وروستيو وختونو کښې لاتيني ژبه خپل تسلط څرګند کړ او څه د پاسه زر کاله ئې د نيمې بين المللي ژبې په عنوان په منځنيو پېړيو کښې په لويديځو ملکونو کښې رواج وموند، هر چا

(نور په ١٦ مخ کښې)

# ادب ګوټه

مرحوم رحمت الله بابا :

## دمعنی د اوبــدلو دی آثر ګټور

په غوږ نيونکي ږغيدونکي بر تکرار داولي
لکه بلبل چې دغنچې شوق په ګفتار داولي
ډيرې نکتې دي تردې لاندې پلټه ئې پسې
چه پښه اسرار دي پيژندل ته وار په وار داولي
يوه نکته ده دراته چې ذده هنر لره سې
نسبت تر دي چه څوك خروار مشکك درته بار داولي

دمعنی د اوبـــدلو دي اثـــر ګټور
دا اوبدونکو ذړه ؤ سر له پښه افکار داولي
محضې ئې لار دغږ د خوله مدعاده ذړه له
ذړه له ئې ژبه و آواز دغوږ پر لار داولي

اصـر وي باته مطلـــق دتعلـق د آمـر
دزړه خوښتنه هر اقدام پر خپل کرار داولي
اثر ئې ګوره دالفاظو تاثير داده آواز
روح لره قوت ؤ خوشحالي نور الانوار داولي
قدر دانان نکته دانان سخن سنجان دغـې
ږغيدو ته ږغيدونکي بر بخار داولي
سپيره کودرکې کوچنيان قولوي لو بو لره
اصيل جوهر ته جوهري خپل خريدار داولي

پر تاوده ذړه ژړ اثر کيږي د رباب دآهنګ
هم دتودوالي په اثر مطرب پر کار داولي
دساړه زړه تښتن ئې دي په خوند ؤ خط ناخبر
چې ئې مطرب شهباز د ځير و بم پر تار داولي
صالح ناصح کوي ويل نه وائي چا ته قبيح
قبيح ويل خو ئې وګړي په انکار داولي
دلربا ئې د دلبرانـــو دي هنر ؤ کمال
چې محبت لره بيده زړونه بيدار داولي

شمع چې بلـه شي هاله پتې دميني تـحريك
تر نام ؤ ننګ و ترسر تير پخپل اختيار داولي
د بيلتانه حال خو دا تر يخ دى پيښ دي چا ته نسې
تل ئې ليدل نه وليمو ته انتظار داولي

د (رحمت الله) ويل مجمل دى تفصيل ئې غواړي د بل
پښه شار حان په اصلاح حل، داده اشعار داولي

ښاغلی (رشاد) :

## عمل ته بايد پاڅو او دميني څراغ بل کړو

دردونه د جهان ښائي چې په جهان سره درمل کړو
مشکل چې موږ دي مخې ته پخپل زيار سره ئې حل کړو
همت ته بلاس او ږد کړو د ميني نو خداى حامي دى
که غواړو چه زحمت مو په راحت سره بدل کړو
څوك زموږ دميني مينه دي چه دا مو شي چو پې ته
دا څې لاسونې دغږ و پر خداى په توکل کړو

تر څو به دپردو په هيله ناست يو لاس تر زنه
يا ګورو به چې کله بيده بخت د جهان مل کړو
تش بو هه به دردنه خوري و نه کار پخوله پر مخ څې
دزړه قوګرانو باڅې اچه لاس بو دي په عمل کړو

هيڅ تاب و تب مو نشته په وجود کې ته و اميده يو
زړه ور بر عبث صرف د عزيز وخت طول امل کړو
لږ ته موځان و سپاره له زيانه مو لاس و اخيست
څه و وائي چې راسې حواله ئې داذل کړو
تر څو بو دې په لاس نيسو د نورو ته په طمعه
د جهان مينه دي جهان و خو دې تر دي حده اذل کړو
بلا دجهالت او دغفلت ده دا دو چاره
په سپين دنيا کامې کې دخپل پاس موجو ته تل کړو

رښتيا چه نه راګرزي هيڅ چيا و بې خپل څښتنه
اساس دژوندون ښائي په لـه دي دغه متل کړو
بل قيپ د بيلتانه مو ورځ په ورځ پسې خو ئيږي
نو رڅه پر والري مو ږد پښو لو پې رجهان په شل کړو
آخر ولې موږ دا سې يو ضعيف جز و عنصر شو و ؟
چه هر چا ته ور څرمه شو هغه په جهان کې حل کړو
فقط لکه مايع جسم د لوښي ته تابع يو
چه لاس را باندي تير کړي هغو جز د خپل محفل کړو

خپل وژنو او د نورو په روزنه کې ماغزه خورو
وخپلو ته ګټي هير بو د بل درد ته جهان صندل کړو
موږ قولـه د يوه پيژي اجزا يو بيلتون نشته
خبر په خپل وحدت نه يو چه دادردو مو درد غل کړو

له خارجی ادب څخه:
د (ارمانجن) ژباړه:

# لومړنی مینه

د نیمی شپې تر شینګی آسمان لاندی د سمندر پر غاړه د بېړی چلونکی نغمی وویل.

په هسك کښې د لومړی ماښام دځلانده ستوری ایدل.

د ناز کو بڼو پر مخ باندی د شپې د پستو ږغونو چلیدل.

د پسرلی په ټابی کښې د سرې او زرغونې ننداره کول.

له محبت څخه ډکی ستر ګی چی په کور کښې زموږ د راستونیدو ته په انتظار کښې دی په یاد راوړل.

د بلبلی په آواز سره له خوبه راپاڅیدل.

د اوبو په شور دهـاری او زمزمو سره بیدیدل.

د بودوا ګانو ورو شاڼته اوازونه او د مرغانو سندری او د کوچنیانو خبری اوریدل د لوبو او ګنړو ښادونو څخه د صحرا و خوشالی او سمسوری اورشوته تښتیدل.

د لومړنی زوی د زیږیدو څخه ږغیدل.

د افتخار نښه په قلم یا په توره لاس ته راوړل.

د شدیدی ګرمی په سخته تنده کښې دیخو اوبو درلودل.

ظالمان او سود خوران له ټولنی څخه ایستل.

دغه ټول شیونه زما خوښا- لونګی او خوندور دی.

لیکن زموږ لومړنی مینه تردې ټولو زیاته زړه وړونکی او خوندوره ده.

د ن،«نیازی» ژباړه:

# د شاعر غرور

کله چی یأس او ناامیدی شاعرانو وحساسو زړونو ته پناه وروړی نو زر په زړه دځوانی دمحبت او آرزو ګانو پرځای دزمانې غمونه او مصیبتونه میشته شی او هغه نښې چی بوځه عمر په مستی او خروش کښې تیری شوی وی حتماً دژوند په سکوت او خاموشی کښې محوه شی.

غروب کله چی دلمر د آخری ګړی سره په زړه خواشینی وداع کوی نو دردمن زړونه هم هغه هیلی او هوسونه چی یو عالم وخت یې له ځانه سره لرله زر په زړه هیروی ولی چی د آسمان ستوری دشاعرانو د اندیښنو بوه نمونه ده چی دخپل همیشه توب دپاره دنیاته بیرته راغلی دی.



که په ژوند پسې مرګ نه وی هرڅوك به دهستی په صحرا کښې هیښ او سرګردان پاته وای او دهمیشه توب، تریخوالی به د سړی حساسه روح مړاوی او ژهیر کړی وای ولی چی زړه تیا او نیستی سره له انکسار او عاجزی په کائناتو ته هم له ابدی ویری او ډار څخه خلاصون ور کوی.



وایی ژوند جنګ وجدال او مرګ دحیرانتیا دنیاده:

دا دی ټولو افسانو په عالم کښې دځانو دپاره ژوند غوره کړیدی نو همدا سبب دی چی د شاعرانو غرور د ژوند دفقر او زحمت سره په جنګ کښې دی.

دهغه شاعر د کورلیدلو دپاره چی په دنیا کښې بې د خپلو ځو نیت ؤ پرك بانو اشمار و څخه بله قیمتی متاع نه لری باید دی چی د ژوند تظاهرات هیر کاندی ولی چی حساس زړونه بې د ژوند له حقایقو څخه نوره اندیښنه نه لری.

شاعر فقر او بیچاره ګی پخپل غرور سر جبرانوی.

مګر ته، سره له خپلی بې نیازی دخپلو ګناو څرنګه جبران کوی، آیا دا فکر نه درلوږی هغه وخت چی د مغرورو شاعرانو قهر بای ته ورسیږی په ځومره تاو کښې به وی ؟!

( د ۱۳ مخ پاتې )

# د ژبې اختلاف...

کولای شو د اروپا د یوه گوټ څخه بل گوټ ته ولاړ شي او په هغو پوهېږي، کتابونه، ادارې او د پوهنتون لیکنې به هم دغه ژبې کیدلې او زیاتو تعلیمیافته کسانو د دغې ژبې سره آشنائي درلوده او په کلي توگه ټولو

خلکو پخپلو ژبو لیکنې او خبرې نشوای کولای. لاتین لاڅه کوي، لاتیني ژبه اوس مړه ژبه ده او یوازې د علمي او ترمینولوژي اصطلاحاتو په شکله استفاده ځنې کیدله.

دوې پېړۍ دمخه فرانسوي ژبه د یوې ادبي او دیپلوماسي ژبې په عنوان بکاریدله او د لومړۍ بین المللي جگړې پورې ئې خپل ستر مقام وساتی او وروسته د فرانسې د دولت د نفوذ تر کمیدو وروسته

د بین المللي ژبې عنوان د انگلیسي په برخه شو او د دوهمې جگړې نه وروسته بیا تر اوسه پورې د زیاتره هیوادونو په منځ کښې تجارتي او د مکاتیبو ژبه ده، زیاتره علمي مجلې او ورځپاڼې پدغه ژبه لیکل کیږي، په الوتکو او نورو شیانو کښې ټولې مخابرې او د اسې نورشیان په انگلیسي کیږي.

هر څوک چې په انگلیسي کښې مهارت ولري د نړۍ په زیاترو سیمو کښې په آسانۍ سره مسافرت کولای شي او په هیڅ ځای کښې له دغه پلوه هیڅ تکلیف نه ورپېښیږي.

که څه هم د بریتانیا عظمت د منځه تللی دی او د امریکې د متحده ایالاتو نفوذ هم کمیږي اوس د مځکې پر اتمه برخه خلک پدغه ژبه خبرې کوي.

(باید وپوهیږو تر دغه شمیر دوه چنده زیات خلک په یوه یا دوو چیني لهجو خبرې کوي) اسرائیل په عبري ژبه پوهیږي، خو انگلیسي او فرانسوي ئې اداري ژبه ده او سربیره پر موړنۍ ژبې هر څوک ئې په یوه خارجي ژبه لکه انگلیسي، فرانسوي، الماني او یا هسپانوي ژبه پوهیږي.

په ترکیه کښې کمال اتاتورک په ۱۹۲۰ عیسوي کښې لاتینه الفبا د عربي الفبا پرځای وټاکله او د صرف و نحوې مشکل قواعد ئې د ترکي ژبې څخه د منځه یووړه، گواکي د یوه صحیح تعلیماتي سیستم د نشته-

والي له کبله اوس هم په ترکیه کښې بیلې بیلې لهجې شته، خو دا څرگنده ده چې د یوه هیواد په سویه کښې د ژبې د یووالي منځ ته راتگ چندان سخت کار نه دی خو دا ولې په جهاني سویه دغه کار تر اوسه پورې غیر ممکن پاتې شوی دی.

البته دا ممکنه نه ده چې یو هیواد خپله ژبه پرېږدي او بله ژبه د هغې پر ځای وټاکي، دا کار د هغه هیواد ملي موجودیت، تاریخي، ادبي او ارزښتو روایاتو ته زیان رسوي، پدغه شکله یوازې د حل لاره داده چې

نړۍ په ټولو ښوونځیو کښې سربیره پر موړنۍ ژبې یوه بله ژبه هم په اجباري توگه تدریس شي، هر کله چې نړۍ والو دغه دوهمه ژبه زده کړه یقین دی چې

یو تر بله سره نژدې کیږي او په تفاهم ئې په منځ کښې راځي او د هغه له کبله جگړې او اختلافونه لیرې کیږي.

# افلاطون څوک و؟

افلاطون (ارسطو کل) یوناني فیلسوف په (۴۲۷-۴۳۸) قمري کال کښې د سرشناسه مور او پلار څخه چې د اشرافو د طبقې څخه وه د آتن په ښار کښې دنیا ته راغی.

په شل کلنۍ کښې ئې د سقراط مکتب ته لار پیدا کړه، او د هغه سره یو ځای شو.

په څلویښت کلنۍ کښې افلاطون د فلسفي د مکتب بنیاد په آتن کې کښېښود، او د فلسفي آثارو په لیکلو ئې شروع وکړه، د ده د مشهورو کتابو څخه کولای شو چې (جمهوري) او (ضیافت) یاد کړو.

افلاطون ته د «فلسفي مکتب» پلار هم ویلای شو.

د رحمت الله دمړوند ژباړه:

د خارجي مطبوعاتو څخه:

# د تیاتر لنډه تاریخچه

تیاتر د نن ورځې په معنی هغه ځای ته ویل کیږي چې هلته خلک د یو ښوونې د لیدلو اپاره راغونډ شوي وي.

یونانیان لومړني ملت دي چې د تیاتر د بنسټ ډبره ئې ایښې ده او هغه ته به ئې «اودي تور یوم» وایه تیاتر د ډېرې زمانې راهیسې په یونان کښې موجود و او ځینې آثار ئې اوس هم په موزیمونو کښې شته او هم د پخوانی یونان د تیاتر خرابې په آتن کښې لیدل شوي دي قوله د احقیقت څرګندوي چې (۶۰۰) کاله تر میلاد د مخه په یونان کښې تیاتر موجود و.

یونانیانو تیاتر د مذهبي مراسمو جز باله اود هغه یو برخه به د رب النوع عبادت و د مختلفو رب النوعو دورځې د تجلیل په مراسمو کښې به ننداری کیدلې چې تر ټولو مهم رب النوع ئې (دیونی نیزوس) د شرابو رب النوع و چې په کال کښې به د یوه محل لپاره د هغه ورځ نمانځل کیده. معلومه ده (دیونی نیزوس) د شرابو

کاشف و د دوی په عقیده همدغه خبره ده چې شراب خلکو ته نشاط او خوښي بخښي.

ورو ورو (دیونی نیزوس) د شرابو جشن عمومیت وموند او په دې ډول ترتیب د نورو رب النوعو لپاره هم همدغه ډول جشنونه نیول کیدل.

یونانیانو د تیاتر په ځای د (تراژدي) کلمه استعمالوله او بل دا چې د تیاتر د ننداره و لپاره ئې د وزي نغمه غوره کړې وه البته دا نغمه چې ځکه غوره کړې وه چې وزه د شرابو د رب النوع مقدس حیوان و او د آتن حاکم اعلان وکړ هر چا چې یو ښه ډرام ولیکي یوه وزه او څه نقدي پیسې جایزه ورکول کیږي.

د تیاتر ځای په یونان کښې یوه ودانۍ وه چې دروازه ئې نه درلوده په دې معنی چې مخ ئې بلکل ایله وسر ئې نه و پوښلی ننداره چیان به د ضالون په شمالي خوا کښې چې د ډېرو لوړو ګټو ینستل چې البته په هر یو کښې ئې مخصوصې چوکۍ ایښودل شوي وې او په منځنۍ برخه کښې ئې هنرمندان وه او خپل نمایشونه ښودل چې دغه ځای ته به بیا په یوناني اصطلاح (ارکسترا) ویل کیدی او همدغه (ارکستراسیون) لغت ورو ورو د موسیقۍ سره اړیکي پیدا کړې.

د تیاتر جنوبي پلو ته یو مجلل تعمیر چې درلودنکې د ډېرو ښکلو چوکیو او غرفو و د ځای بیا مخصوص د امپراطورانو، حاکمانو، خارجیانو، سفیرانو او میلمنو د پاره و.

تر میلاد د مخه په (۵۳۴) کښې (فري نیکوس) یوناني ډرامه لیکونکي په تیاتر کښې تحول راوستی هغه دا چې د باچهانو او ځینو نورو مشهورو خلکو د تیر سوي ژوند

تاریخ به ئې په تیاتر کښې په عملي ډول ښکاره کاوه چې په همدې ډول په تیاتر کښې لومړنی ډراماتیک تحول منځ ته راغی

تر میلاد د مخه په (۴۷۶) کښې د فنیقي ښځو په نامه یو نمایش وښودل شو چې ټول خلک ئې حیران کړل او ورو ئې ښودل چې د تیاتر یوازې مذهبي او نمایشي خوا جالبه نه ده بلکه ځینې تاریخي داستانونه خواږه سرګذشتونه او داسې نور شیان هم په تیاتر کښې ښودل کیږي.

د تیاتر اصلي او حقیقي مخترع (آشیلوس) شاعر و چې ارسطو دده په باب وائي:

«دده د تیاتر د لوبغاړو شمیر د یوه څخه د دوو ته ورساوه او زیات کار کوونکي ئې ځینې وایستل پاته لوبغاړو ته ئې په زړه پورې لارښوونې وکړې» پسله ده (سوفوکل) د لوبغاړو شمیر درو ته ورساوه چې د لومړي

پلا د پاره ئې ټولي صحنې خپله ترتیب کړې همدغه رنګه (سوفوکل) ځینې نور تغیرات هم په صحنه او نمایشاتو کښې راوستل او د خلکو د ژوند ډراماتیک داستانونه ئې په خپلو نمایشاتو کښې داخل او هم د ننداره کوونکو

د ډېر والي او د هغو د جلبولو د پاره ئې موسیقي هم د تیاتر سره مل کړې هغه و چې د (سیلو آشنیوس او سوفوکل) لومړني تحولونه پای ته ورسیدل او ورپ (اوردي پید) ته

ورسیدی ده د (پاکانت) په نامه مشهوره ډرامه چې د (اوری پیدو) انسروا هم ئې د (سوفوكل) ډرامو نه لکه (اودیپ) او (الکترا) چې دهغه وخت دمهمو شهکارو

څخه ګڼل کیږي. دهغه وخت د خلکو زیاته توجه ئې جلب کړې وه او ترا وسه ئې هم ډیر اعتبار ساتلی دی.

د پخوانی یونان تیاتر په

لومړیو وختو کی یواځی د نطاقی شکل درلود او لوبغاړی به آرام ولاړ و، بیله حرکته به خوله ډرامې

حادثې اوستلې هر لوبغاړی به د خپلې وظیفې په اساس ځان ځانګړی

رنګه جوړ کړی و چې په همدې ترتیب به لیدونکی د لوبغاړو د ظاهری حالت څخه پوهیدل چې

کوم لوبغاړی د چا رول لوبوی چې ابتداء ددې پوهیدو لپاره به لیدو

نکی مجبور نه وه مه هغه ترڅو چې تیاتر ته ولاړ شی پولی معلومات به ئې د تیاتر او د تیاتر د لوبغاړو په باب لاس ته راوستل. مثلاً هغه دا چې

د سر دوه ښکلی ښکرونه ئې وو چې د زړورتیا او سخاوت

سمبول و او د ښځو په نسبت بدشکله او طلائی ویښتان بدشیطانت

نښې وې د ګیس ځرما ئې خولې به د ښایست نښه وه او ویښتان

به د پستۍ او خطا ایستونکی ښکلی او اوږده ویښتان به د مینو ښکلی

سمبولونه وو.

د یونان د خلکو د تیاتر سره دومره مینه او علاقه وه چې کله

کله به یوه ننداره درې ورځې برلاسې ښکاره کیده د یونان

تیاترونو د ۱۷ زرو تنو لیدونکو دپاره ځای درلود د لوبغاړو اهمیت او عزت د (فلیپ او اسکندر) په وخت کې زیات شو.

د اسکندر په وخت کې د یونان په هر ښار کې یو یو تیاتر جوړ شو د میلاد د مخه

په ځلورو پیړیو کې په آتن کې یواځې

(۲۸) لوبغاړی موجود وه چې دا لوبغاړی به په قول او عملو پوهیده په هغه وخت

کې لوبغاړو د لومړی ځل لپاره په جهان

کې اتحادیه جوړه کړه چې نن ورځ د (سندیکا) په نامه مشهوره ده د (سندیکا) نوم د (خدام سوزانجمن) پر کښیښود.

وروسته موسیقی او نڅاهم د تیاتر سره ملګری او دهری ننداری شروع

به د (شیپور) په وسیله اعلانیده او همدغه

رنګه به دیوه عاشقانه ننداری پا

(ایر بکه) د ښکاره کیدو په وخت کښې به آرام آهنګ لرونکی موسیقی چې د چنګ آواز به هم ورسره مل و غږول

کیده.

د یونان پخوانی تیاترونه په همدې

ډول روان وه او مخ ته تله څو پیړۍ وروسته ئې

هیوادونو ئې تر ډیر تأثیر لاندې

راوستل.

تیاتر د اروپا تیاتر په ځینو ښارو

کښې د لسمې پیړۍ تر پایه خصوصی شکل درلود د لوبغاړو به ئې مخصوص ځای

درلود یا پاچاهانو او حکومتی مشرانو

به لوبغاړی ځانګل او بسله لسمی او یوولسمی

پیړۍ څخه تیاتر د دغه انحصاری شکل څخه وا وښت او مذهبی شکل ئې ځانته

غوره کړ.

د موسیقی استادانو دا راتوریو مس، سپوم، ورکویم، مسیح او حوادیون

تا بلو ګانی جوړې او تیاترونو ته ئې د کومکه په ډول ورکړی.

دغه حالت دوام درلود څو چې د رنسانس دوره راورسیده په دې

وخت کښې تیاتر په آسیا ئې او اروپائی هیوادو کښې دواج

وموند.

په آسیا کښې (کالیداسا) او په اروپا کښې میارلو، شکسپیر مولیر او په (۱۸) پیړۍ کښې (باګوته) او (شیللر) د مستعدو لوبغاړو په نامه وپیژندل شول.

د فریدی (س) ژباړه:

# کلاسیك ادبیات

کلاسیك ادبیات هغه ادبیات دی چې پر عقل، منطق او استدلال موافق وی چې تخیل په هغه کې د تل لپاره یکښې محدود دا وکه منظم او مرتب

وی کلاسیك ادبیات معتدل او میانه روده چه په دقت او ډیره موشګافی ترتیب شوی وی د کلاسیك ادبیاتو ژبه محکمه ساده او روانه وی.

د کلاسیزم اصطلاح په نورو هنری رشتو کښې لکه موسیقی نقاشی مجسمه سازی هم معموله ده د پخوانی یونانی لیکونکو آثار او د فرانسې د ۱۷ قرن لیکوال

لکه لافون مولیر پاسکال، دراسین کرنی پوالو آثار کلاسیك دی.

په ۱۹ میلادی قرن کښې یوه لیکوال تر رومانتیك لاندې راغونډ شول چې دهغو لیکوالو چې د ۱۷

قرن ډله دادبیاتو پیروی او دفاع ئې کول په مخالفت کښې ودریږی ددې ډلې او سبك لوی پهلوانان شاتو بریان او مادی دوستال دی.

د کندهار د مشایخو پېژندنه:

غلام فاروق «انورزی»:

# میر بابا (رح)

میر بابا د صالح محمد زوی د محمد صادق لمسی او د عبداللطیف کړوسی دی په خټه ابوبزی، بوبلزی او په ۱۱۷۲ قمري کال کښې د نیش د علاقې د کته خنجك په کلي کښې زېږېدلی دی.

که څه هم ددهٔ د پلار کسب بزګري او مالداري وه خو ددوی کورنۍ په خپل قبر کښې صاحبزاده خیل دی کله چې د میر عمر ۷ کلنۍ ته ورسېد نو د دیني علومو په زده کړه ئې پیل وکړ او ۱۳ کاله ئې پرله پسې د دیني علومو په زده کړه او تحصیل کښې شپه ورځ زیار او زحمتونه وګالل تر څو چې په شل کلنۍ ئې زیاتره دیني علوم لکه: صرف، نحو، معاني، فقه، حدیث شریف، تفسیر شریف او داسې نور د خپل وخت دیني عالمانو څخه زده کړل او د نورو اړو دیني علومو او کتابونو په مطالعه بوخت شو. کله چې د میر سن ۲۱ کالو ته ورسېد نو ددهٔ په څېره

کښې د نیکۍ، زهد او تقوا نښې ښکاره شوې، تر څو چې د عمر په ۲۲ کلنۍ کښې خدائې مینې پر ده غلبه وکړه او پدغه وخت کښې ئې

زیاتره وختونه د خپل کور په خوا نژدې غره کښې تېرول او بیله دیني علومو د مطالعې نه ئې بل

کار نه کاوه، ورځې به ئې په خپله حجره او شپې به ئې په غره کښې د لوی خدای (ج) په عبادت کښې تېرولې.

که څه هم میر ګوښه نشیني غوره کړې وه خو د شریعت څخه ئې مخالفت نه کاوه او اجتماع ئې هم نه پرېښوده.

څرنګه چې ددهٔ د خپلوانو کسب بزګري او مالداري وه لاکن میر د خپل ژوند احتیاجات د هیچا پر اوږه نه اچول او نه ئې

د خپلوانو لاس ته تمه درلوده بلکې د فراغت په وخت کښې به ئې د نږدې غرو په لمنو او دښتو کښې حیني نباتات چې په طبابت کښې د هغو څخه کار اخیستل کېده لکه زیره، شکنباده، خاکشیر

ګنجه، او نور د غه ډول طبي بوټي به ئې ټولول او د دغه درکه به ئې د خپل ژوند اړتیاوې پوره کولې.

میر بابا ۱۵ کاله د سعودي عربستان په لوري د بیت الله شریف د حج او د نورو متبرکو ځایونو د زیارت کولو دپاره سفرونه

کړېدي، چې افغاني حاجیانو به هر کال میر بابا د حج د ادا کولو په وخت کښې په مکه معظمه کښې لیدی.

میر بابا به د مکې معظمې د زیارت کولو نه وروسته څو مده په مدینه منوره کښې هم تېروله او بیا به خپل هېواد او سیمې ته راستنېدی.

د میر بابا خپلوانو او دوستانو آرزو درلوده چې ددهٔ دپاره کوژده وکړي خو میر بابا ددوی دغه غوښتنه د عمر تر آخره پورې ونه منله.

کله چې د میر بابا سن ۴۰ کالو ته ورسېد جذبې غلبه پر وکړه او مجذوب شو او زیاتره

وختونه ئې به غره کښې تېرول، په میاشت کښې به ئې لس ورځې په روژه او فاقه تېرولې.

کله چې د میر بابا عمر ۷۰ کلونو ته ورسېده نو په نږدې او لیرې شاوخوا سیمو کښې د میر بابا د فیض او روحانیت انګازې خپرې شوې او د ګران هېواد د نږدې او لیرې سیمو څخه هغه کسانو

چې میر بابا ته ئې اخلاص او عقیدت درلود د لیدلو او صحبت دپاره ځانونه را رسول.

د وخت او عصر لویو کسانو د میر بابا د لیدلو او مصاحبت آرزو درلوده او د میر بابا د روحاني مقام نه ئې په درنښت یادونه کوله.

میر بابا د عمر په ۸۵ کلنۍ کښې د غره نه را کښته شو چې هیڅوك د هغه د حقیقي حال نه خبر نه شو.

په پای کښې د خپل آبائي مسکن نه ئې د خوا سیدي د دښت په لور چې د باریکې د کاریز شمالي پلو د نیش د علاقې په منځ کښې واقع دی حرکت وکړ او هلته ئې استوګنه غوره کړه. پدغه وخت کښې د میر بابا د روحانیت او بزرګۍ شهرت هری خواته خپور شو

او د هیواد د هرې گوښې نه حاجت لرونکي دده حضور ته راتله او د خلکو دغه تګ او راتګ د اخترونو په وخت کښې

زیات ؤ او په کوچني او لوی اختر و کښې به دده د قاقو بې په شاوخوا کښې په سوو او زرو کسان راغونډیدله، د اخترو د

میلو د خوښۍ ورځې به ئې په دغه ځای کښې تیرولې آن تردې چې د میر بابا د وفات نه وروسته هم ترا وسه پورې د نیش د علاقې او

نژدې شاوخوا سیمو زیاتره کسان چې میر بابا ته اخلاص لري د کوچني او لوی اختر و میلې دده د زیارت په څنګ کښې کوي.

میر بابا د خپل عمر تر آخره پورې په دنیائي کارو لاس و نه واهه او ټول عمر ئې د خدای تعالی په عبادت تیر کړ، ترڅو چې د

په ۹۵ کلنۍ کښې وفات شو، او د باریکي کاریز په جنوبي خوا کښې د یوې غونډۍ په سر کښې خاورو ته وسپارل شو.

څرنګه چې دده د ښخیدلو ځای دښت او د وطن د کاریزو د اوبو نه لوړ ځای ؤ نو وروسته بیا د باریانه او خیر غوښتونکو

کسانو په همت د ډیرو نورو سیمو نه چې د میر بابا د مزار په جنوبي خوا کښې واقع ده.

د میر بابا د مقبرې د آبادولو او د زیارت په شاوخوا کښې ئې د نهالګیو د ایښودلو دپاره دده نور څخه دا او بو راوستلو دپاره ویاله وکیندله شوه او د میر بابا

د مقبرې او مزار پر شاوخوا باندې د توتانو ډیر نهالګي کښینول شوي دي او د دغه نهالګیو

لوئیدلو تروخته پورې ئې د دره نور د سیمې څخه او به راوستلې.

د میر بابا پر مزار د توتانو دونو لوبه تکیه شته چې د میوې څخه ئې خاص وعام استفاده کوي او تر سیورې لاندې ئې مسافران

او نور خیلي ستړیا لیرې او استراحت کوي.

په وروستیو وختو کښې د میر بابا پر مقبره باندې د ختو او ادمو خښتو څخه یوه مربع

ډوله مناره جوړه شویده چې ۲۰ متره اوږ دوالي لري او د هغې

پر سر باندې د میر بابا د مزار جنډه د لیرې ځای څخه ښکاره کیږي.

د «شیللر» اثر :

د «ریدی» ژباړه :

# چوپتیا

امیدونه وهغه سراب ته ورته ده چې چې موږ خپل ځان ته ور کشوي.

دا سراب ډیره با څونکي، اما ډیر خوږ او زړه خوشالونکی دي.

زه ستا بې لیدو څخه بل ارمان نلرم او غواړم چې هر ګړی می د زړه او ربلې لمبې وکړی نو ځکه له دې امله زه ستا بیلتون پر وصال خوښوم.

زما اوښکې او اوسیلونه زړه وبلونکي دي اما غواړمه چې دا اوښکې بیله زما د لمنې څخه بل ځای نوی نسی.



کله چې ستا دمخ په اندیښنو کښې زما د عمر شپې تیرېږي نږې ومانه لوئیږي.

زما غم او خوشالي دومره ږده نژدې شوی او یو له بله ئې خوی سره نیولی دی چې بیلنه ئې ډیر سخت کار دی.

زما د زړه ټوټې! غمونه چې ستا په یاد، پر ما باندې تیرېږي تر هرې خوشالۍ ما ته ښه او زړه ته را تیر دی ما ډیر ځله د زمانې له غمونو څخه ژړلي دي.



زما د زړه میرې! وایې چې تردې نړۍ وآخوا ته بل جهان هم شته.

هغه جهان چې ډک له عشق، خوشالۍ مینې او محبت څخه دي.

زه دا اوس په هم‌نفسی جهان کښې خپل عمر تیروم؛

ځکه چې ستا محبت په زړه کښې پالم او ستا پر ښایسته مخ مین یم.

زما مینې! د ابدیت څخه انکار د خپل وجود او هستي څخه نږه کول دي فنا هوښیار سړی له کومه معنی نلري.

زه غواړم چې ستا په عشق کښې تر ابده خوشاله و اوسیږم؛

ځکه ته زما خوار د ارمانونو او آرزوګانو قبله ئې.

د خبرو لمن راټولوم او بیا هم لکه د پخوا په شان د خپل زړه په کور ننوزم، ترڅو ستا سره د زړه خواله وکړم؛ خوله‌نیسم او چوپ یم.

دواګانې د بدن ویټامینو ته زیان رسوي او دا ډول دواګانې هم باید تل د (ب) دویټامینو سره یو کار ولویږي کنه نو دا ډول دواګانې ناوړه نتیجه ورکوي.

دا ځکه چه په خپله د (ب) ویټامین د خوب د راوستو نکی او مسکن دی اعصابو او مغزو ته ګټه رسوي، نو باید لاندې لارښوونې په نظر کې ونیسئ او خپل پام ورته واړوئ:

پرته د ډاکټر له مشورې څخه هیڅ ډول دوا مه خورئ.

که څه هم ویټامینو ته دې دا ځکه دد وا زیات خوړل زیان لري چه د بدن انډول خرابوي دا ځکه څوک چه یو ډول ویټامین زیات وخوري نو د نورو ویټامینو ته زیان رسیږي، مثلا د ویټامین (ب) زیات استعمال (پ پ) ویټامین ته زیان پېښوي او یا د (آ) دویټامین زیاتوالی د (ث) زیات ویټامین له منځه وړي.

۱- نو ښه به دا وي چه ویټامین لرونکې دواګانې په متعادل ډول وخوړل شي چه په بدن کې توازن وساتل شي.

۲- ترڅو چه کولای شی هڅه وکړئ سابه او میوې چه بېل بېل ویټامینونه په متعادل ډول پکښې وي استعمال کړئ دا کار د طبابت تر ویټامینونو ډېره ګټه لري

۳- د لمر او آزادې هوا څخه ګټه واخلئ او پلی تګ هم بدن ته ډېره ګټور دی.

٤- باید ستاسو خواړه متنوع وي او ټول لازم خواړه کې شیان لکه شحمیات، البومین او سالاد ولري. (د کندهار مجله)

د ریډرز ډایجسټ څخه:

د انځیوال ژباړه:

# د تلویزیون پانه څه ډول د زده کوونکو سره په تدریسي چارو کې مرسته کوي؟

په هغه وخت کښې چې د تیر شوي تدریسي کال په سر کښې په سکاټلنډ کښې د ګلاسکو ښوونځي خلاصیدل، د فرهنګي چارو آمرینو ولیدل چې څه د پاسه سل تنه ښوونکي ئې کمبود دي که څه هم لس زره پونډه ئې په بانک کښې ذخیره درلودل بیا ئې هم نشو

کولای چې دغه خلاء ډکه کړي، نو ئې فکر وکړ چې د دغو ذخیره شویو پونډو څخه په دغه هکله د بلې لارې څخه کار واخلي، یوه داسې لار چې د تدریس مشکلات له منځه یوسي او د ښوونکي د کمبود نیمګړتیا لیرې کړي.

د تلویزیون په کار اچول د تدریس دپاره د حل یوه مناسبه لاره وه چې و ئې موندل، د تلویزیون د لیږونکي ستګاه د نصبولو دپاره ئې د بریښنا د ترامواي د سټیشن او ډېرو ودانۍ څخه کار واخست او هغه ئې د لیږونکي مرکز

په حیث تبدیل کړ او ۳۵۰ ښوونځیو دپاره ئې د تلویزیوني خپرونو څخه د ګټې اخستو زمینه برابره کړه او په ۱۹۶۵ کال کښې په انګلستان کښې د درسونو د خپرولو لومړی لیږونکي

مرکز پرانستل شو او د دغه مرکز څخه لومړی د ښوونکو د کمبود پوره کولو او بیا د ښوونځیو د فرهنګي او تدریسي پروګرامونو دپاره کار واخستل شو.

د تلویزیون پروګرام د درسي ټولګیو کار پرمخ بوتلی او

د دغو تعلیماتو د رئیس په قول د مانچستر د پوهنتون پروګرام دپاره تلویزیون یوه ستره ذخیره ده او ښوونکي کولای شي د هغو څخه په تدریسي چارو کې ګټه واخلي.

په پوهنتون کښې د تلویزیون د څیړنې د مرکز رئیس په دې فکر دی چې تلویزیون د ټولګي د درس د تدریس د اغېزناکه

محرک په حیث دی او د هغه په واسطه مشکلې نظریې په پوره وضاحت سره زده کوونکي ته ښودل کیږي.

په ګلاسکو کښې چې د تلویزیون د مرکز له پرانستلو څخه شپږ کاله تیریږي په هغه کې د ایډلو ود انکشاف داغلی او د تاریخ جغرافیې، تجارت او دیني تعلیماتو په جمله کښې د نورو تدریسي

موضوعګانو په ګډون په دغو تدریسي مرکزونو کښې کار اخستل کیږي او د یو بل کیبل په واسطه چې د (جوړ دن هیل)

لیسه د دغه مرکز سره نښلوي د درسي ټولګیو دپاره ئې نوي فرهنګي پروګرامونه ترتیب کړي او زده کوونکي د هغو څخه کار اخلي.

د کلاسکو د تلویزیون دستګاه هغه بریالیتوب چې لاس ته یې راوړی دی لندن ته یې هم د خپرونو سلسله اوږده شوه او د انګلستان د فرهنګي مؤسسو مرکز هغه په پوهنیو د تدریس د پاره په کار واچاوه او نن دغه مرکز د انګلستان له لویو فرهنګي مرکزونو څخه شمېرل کېږي او د هغه هیواد نیم ملیون وړو کي په زړونو پوهنیو کښې د دغو تلویزیوني پروګرامونو څخه ګټه اخلي او بېل بېل موضوعات لکه لیک، ډرام لیکل، کیمیا، د روغتیا چارې، تجارت، تاریخ او جغرافیه زده کوي او د (هال) او (پلیموت) په وړو کو ښارونو کښې هم د تدریس له دغې نوې طریقې څخه استفاده کوي.

که څه هم د تلویزیوني تعلیماتو مرکز یوه نوې فرهنګي پدیده ده د انګلستان د بي بي سي خپرونکي دستګاه په تېرو څوارلسو کلونو کښې چې د فرهنګي تلویزیون د شروع څخه تېر شوي دي پراخ پروګرامونه تر اجرا لاندې نیولي دي او د دغو پروګرامونو د هم آهنګ کولو له کبله د موضوعاتو د تکرارولو مخ نیوی شوی او زیاته استفاده ځني شوې ده.

یو له هغو ګټورو پروګرامونو څخه چې تېر کال د تلویزیون د فرهنګي او تدریسي مرکز څخه خپاره شوي دي د ابداعي تکنالوژۍ پر له پسې پروګرامونه وه چې په ټول لندن کښې خپاره شول او حتی کارګر ملکانو په خپلو کارګاوو کښې ګټه ځني واخستله، د غه پروګرام (ران ګلد نیک) اجرا کاوه.

لومړی یې د آس د نعل په شکل یو فلز ښکاره کړ چې د هغه پر شاو خوا یې نازک سیمونه مښلولي وه، هغه یې د یوې بېټرۍ سره تړلی او مقناطیسي کړی یې وو او په هغه سره یې وړې فلزي ټوټې راغونډې ولې او د بېټرۍ څخه تر جلا کېدو وروسته هغه کوچنۍ فلزي ټوټې پر مځکه باشل کېدې دغه ساده تجربې د وړوکو ته مقناطیسي طریقه وروښودله.

وروسته ګلد نیک د دغې تجربې د استعمال په باب د فرهنګي پروګرام ننداره کوونکو ته توضیحات ورکړل او ددې لپاره چې د هغو د تفکر د قوې سره مرسته وکړي د غه مقناطیسي کړی یې د یوه جر ثقیل سره ومښلوله او څرګنده شوه چې د دغه مقناطیسي خاصیت له کبله د مځکې څخه د دانه شیان اوچتولای شي.

دغه رنګه یې د ټیلفون د داخلي دستګاه کار کول چې د دغه اصل سره سم دي د مثال په ډول یاد کړ او دغه وړه تجربه د هغه چا لپاره چې له تلویزیون څخه یې لیدله ډېره د لچسپه وه.

دا ټول تدریسي پروګرامونه کولای شي زده کوونکو د علمي او فني استعداد د روزلو په لار کې ډېره مرسته وکړي او هغوی په ذهني او فکري لحاظ پرمخ بوزي او هغه متخصص ښوونکي دا ټول تهیه کوي چې د شاګردانو لپاره د استفادې وړ وي.

د تلویزیون لیږونکو دستګاوو

د تلویزیون درسي پروګرامونه

په پوره څېر تیا او ښه توګه خپاره کړل، او په هغو کښې ټولې علمي طریقې او تجربې چې د شاګردانو د پاره ګټورې دي ښودل کېږي.

ددې لپاره چې د دغو پروګرامونو اغېزه د زده کوونکو په دماغونو کښې په دقت سره اندازه شي د دغو پروګرامونو تهیه کوونکي چې درسي ټولګیو کښې د تلویزیون په واسطه ګډون کوي او د هغو اغېزه سنجوي.

باید د دغه ټکي ته خپله پاملرنه واړوو چې د دغه ډول پروګرامونو تهیه کوونکو په هیڅ توګه دا ادعا نه کوي چې کولای شي د ښوونکو ځای ونیسي او هغوی ټینګار کوي چې د هغو کار د ښوونکو سره د تدریس په لار کښې مرسته ده او په حقیقت کښې د تلویزیون تدریسي طریقه د درسونو په پر مخ بیولو کښې یو ښه لار ده.

یو فرانسوي ښوونکي ویلي دي چې دی په فرانسه کښې د تلویزیون د تدریس له طریقې څخه پوره رضایت لري، دا ځکه د هغو تلفظ ته په ډېر غور سره غوږ نیسم او لازم اصلاح پکښې کوم، په دغه طریقه کښې ښوونکي د معلمي د کار د طرز سره آشنایي پیدا کوي او د دغه فن مخصوصو ټکو ته متوجه کېږي او زه په خپله د تلویزیون د تدریس څخه ډېر خوند اخلم او د هغو په لیدلو سره پوهېږم چې زما د تدریس په هکله څه نیمګړتیاوې شته او د هغه په لیرې کولو کښې زیار باسم.

د انګلستان د (لانکاشیر) د سیمې د تاریخ ښوونکي معتقد دي چې تلویزیون ماته دا ښودلې دي چې څه ډول د هرې موضوع د تدریس لپاره پوره چمتوالی ولرم او د درس کلي طرح تهیه کړم او په نتیجه کښې په ډېر مؤثره او بهتره توګه شاګردانو ته درس ورکړم او هم له دغې

(نور په ۲۵ مخ کښې)

لاری څخه زده کوونکی د سوونه
چه زده کوی اوصحیح تلفظ کولای
شی او سربیره پردی د لوړو متخصصینو
او تکړه استادانو څخه دادبیاتو

هنر موسیقۍ او درام په هکله ډیر
ګټور او بهترین معلومات لاس ته
ورسولای شی .

که تلویزون په دغه برخه کی
په کارنه وای لوبدلی ، د هنر

موسیقۍ او ادبیاتو د لویو کسانو
لاس ته راوستل به تیره بیا د ښوونځیو
دشاګردانو دپاره اسانه کارنه ؤ
چه هغوی دعوت کړی چه دیوه
ټولګی دپاره لکچرورکړی به

داسی حال کی چه د تلویزیون په
واسطه د زروګونو شاګردانو دپاره
ګټور او بهترین اطلاعات دهغو
په اختیار کی ږدی سربیره پردی
تعلیماتی او فرهنګی تلویزیون

دلوړی بیی تجربی وسایل او بی مثله
او په زړه پوری مناظر د ننداری
دپاره تهیه کوی چه دشاګردانو
دپاره پرته له تلویزیون څخه دهغو
تهیه کول ډومره زیات لګښت

ایجابوی چه دښوونځیو تروس
پورته دی ، مثلا د لندن ښاروال
ډیر ګران قیمته جامی د تلویزیون
ننداره چیانو ته د ننداری دپاره

برابروی او یاډیری بخوراؤنی جنګی
جامی د موزیمونو څخه رابا سی او د
درس او ټولګی محیط ته ئی راوړی
یاډیر عجیب بحری حیوانان او

بوټی د تلویزیون پرصفحه باندی
څرګندوی چی د هغو لاس ته راوړل
آسانه او ساده کار نه دی .
د تلویزیون د لاری تعلیمی

پروګرامونو جالب او تازه مطلب
د ښوونځی لپاره برابر کړی دی
مثلا دفرانسوی ژبی زده کول ئی

په خپل پروګرام کښی زیات
کړی او ډیره نتیجه ئی ور کړی
ده .

دا ډول پروګرام زیات لګښت

نه غواړی او د کال په ۳۰ پونډه
دیوه تلویزیون د دستګاه په
کرایه کولو سره شاګردان د
هغه څخه ورځ یا ګټه اخلی په داسی

حال کښی د ګلاسکو په سیمه کښی
د زده کوونکو د تدریس لپاره
د دغو پروګرامونو تهیه کول د
کاله څه دپاسه دوه لکه پونډه

لګښت ته ضرورت لری او د هر
شاګرد د پاره تقریبا دوه شلینګه
تمامیږی .
سربیره پر ښوونځیو په

پوهنتونو کښی هم د تلویزیونی
پروګرامونو اغیزه او نقش ګټور
دی دغه مرکز د ۲۰۰ پوهنځیو
لپاره درسی پروګرامونه برابر

او تنظیموی او د تلویزیونی د
بهترین تدریس له کبله ؤ چی
تیر کال په انګلستان کښی لومړی
آزاد پوهنځی چی ټول تدریس ئی
په تلویزیون سره دی پرانستل
شو .

په دغه پوهنځی کښی ټول
تعلیمات د تلویزیون ، راډیو او
مکاتبی د لاری صورت نیسی او
له هغو څخه (۲۵۰۰) تنه شاګردان
علمی استفاده کوی او د دغو
پوهنتونو حقایقو څخه څرګندیږی

چی په آینده کښی د تلویزیون اهمیت
او ارزښت د تدریس او تعلیم په چارو
کښی لا بیری ډیر مهم ګرزی او هغه
ټولو ښوونځیو ته پرانختیا موږ می او

ټول معلمان او زده کوونکی د دغو
پروګرامونو څخه زیاته ګټه اخستلای
شی .                    (پای)

---

دمحکث ژباړه :

# داشپز خانی

## بوډول نوی وسیله

دامریکا د او هایوی په ایالت
کښی د اشپز خانی جوړولو یوی
فابریکی په دی وروستو کښی یوه
آله جوړه کړی ده چی په اشپز خانه

کښی څو کاره سرته رسوی یعنی د
غوښو د پریکول د بهاڼو پوستول د
میوو او به نیول ، د یخی ماتول د خوړ اکی
قوطیو خلاصول سرته رسوی .

دغه آله یو ډول وړکی موټر لری چی
داشپز خانی په یوه اړخ کښی نصبیږی .
او دهغی په کار اچول ډیر آسانه او بی
ځغه دی او د سوځلو مصرف ئی لږ دی .
کور لرونکی ښځی هغه په یوه

سویچ سره په کار اچوی او هر کار چی
په اشپز خانه کښی لری هغه سرته رسوی

او نور نو غوښو پریکول ، د میوو څخه
داو بو ایستل او نور د شیانو ته اړتیا
نلری ، دغه ټول کارونه ماشینی سرته
رسوی .

دوکتور «خطیبي» د عامې روغتیا د غاښو ډاکتر:

درو غتیا برخه:

# د بدن سره د خولې رابطه

کاریس یا د غاښو د چنجي خوړل او د اوریو وینې کیدل په لومړي نظر یو عادي حالت څرګندیږي بداسې حال کښې چې داسې نه ده او ومرو د بدن سره اړیکې لري او هغه د سړي پر روغتیا باندې اغیزه کوي.

دا ځکه چې د خولې محیط (غاښونه او د خولې محاطي غشاء) د بدن سره رابطه لري، د بدن کوم آفت په خوله کښې عکس‌العمل او دغه رنګه د خولې کوم آفت او ناروغي د بدن پر نورو غړو ناوړه اغیزه ښندي او که د هغه مخنیوی ونه شي وروسته د سختو ناروغیو باعث ګرزي، نو بـاید د غـاښو چنجي خوړل ود اوریو وینې کیدل هیڅکله بې اهمیته و نه ګڼو او د دومړو لپ حقیقي عامل و لټوو او په دغه هکله د غاښو ډاکتر ته رجوع وکړو.

په بدن کښې د اضافي موادو افرازات یا د بولو او د خولې او یا د خولې د ناړو په واسطه خارجیږي او ټوله ثابته موازنه لري، البته د دغو دریو مجراګانو مختل کیدل د بدن پر یوه برخې باندې فشار راولي او د ناروغي سبب کیږي.

که د خولې د ناړو مقدار کم شي، افرازي مواد د بولو د لارې د بدن څخه وزي چې د پښتورګي د ډبري د منبع ته راتللو سبب ګرزي او که پښتورګي خپل نورمال فعالیت ونه کړي طبعاً مواد د خولې د ناړو او د خولې د مرغړې له لارې خارجیږي چې د بدن د بدبوی او د غاښونو د ډبرو د تولیدیدو باعث کیږي او البته تر بغل لاندې، پښو او نورو غړو بدبوئي چې د ګنده بغل په نامه یادیږي لدغه کبله ده او د غاښونو



ښاغلی (خطیبي)

ډبري د ژنژویت ناروغي یعنې د اوریو ګوشت خوړ دګې چې اوریه د منځه وړي منبع ته راولي او هر کله چې دغه ناروغي تولیدشي دا ځکه چې میکروبي منبع فعاله کیږي د هغه له کبله د هاضمه جهاز ناروغي (د معدې زخم او امعائي آفتونه) او داسې نور منبع ته راځي.

د خولې د ناړو مقدار ټاکلې اندازه لري او د هغه خاصیت د خولې محیط د میکروبونو د منځه وړل دغذا د یوې برخې هضمول د خولې د محیط لوند ساتل او د خوراک د هغو وړو ټوټو د حل کیدلو سبب کیږي چې په غاښو کښې بند پاتیږي.

که هر کله د ناړو اندازه زیاته او یا کمه شي خپل خاصیت د لاسه ورکوي او د خولې او غاښو د بیلو، بیلو ناروغیو د پیدا کیدو سبب ګرزي.

د هضمي جهاز ټولې ناروغۍ د خولې د ناړو د زیاتیدلو باعث کیږي، دا ځکه که یو څوک د نس چنجي ولري د خوب په وخت کښې ئې د خولې څخه ډبرې ناړې ځي البته ډېر بدبوئیه او د هضمي جهاز تخریشونه هم د خولې ناړې زیاتوي او دغه رنګه د خولې د نسوار او سګرټو استعمال او نور د خانیات د خولې د ناړو موازنه د منځه وړي.

که د خولې ناړې زیاتې شي ځکه چې ضرر ناکه مواد د هغه په واسطه وزي د غاښو په بیخونو کښې د غه مواد ځای نیسي او رسوب کوي او د غاښونو څخه د اوریو د جلا کیدو سبب ګرزي او د میکروبونو د ودې د پاره ښه ځای دی او همدغه شی د غاښونو او اوریو ناروغۍ

منځ ته راولي.

که د خولې ناروغي په لږ اندازه وي د خولې محیط ته شي لوېدلای او بیا ته زیان رسیږي او هم میکروب نشي وژلای او غذائي شیان نشي حلولای او د ناروغیو

د پیدا کیدو سبب کیږي او د غو ناروغیو له کبله په خوله کښې، خیره، ریم او میکروب ځای نیسي او د خوړلو په وخت کښې د هاضمې جهاز ته داخلیږي او د بدن

د بیلو بیلو ناروغیو د منځ ته راتلو باعث ګرځي، په تیره بیا د معدې زیاتره تکلیفونه د اوږدې د ناجوړتیو څخه پیدا کیږي.

د شکرې ناروغي، د وینو بیلې بیلې ناروغۍ، سوزاک سفلیس محرقه، مزمن اسهالونه، مزمن قبضیتونه، د څیګر ناروغي او داسې نور د ناروغانو پر خولو باندې

اغیزه کوي او عکس العمل ئې په اوږدو او غاښونو کښې څرګندیږي.

د سل ناروغي د کلسیم د نشتوالي له کبله د کاریس د منځ ته راتلو سبب کیږي او د خولې ناروغي کموي دا ځکه

د سل هیڅ ناروغ به څوک و نه وینې چې غاښونه ئې سالم وي.

کوم غاښونه چې چنجیانو خوړلي وي هغه غاښونه میکروبونه د غاښو د لارې بدن ته داخلوي، د وینې، پښې او کلیوي ناروغي د منځ ته راتلو سبب ګرځي، د زیاتو

جلدي، داخله او نورو ناروغیو د مخنیوي تشخیص د خولې او غاښونو د معاینې څخه کیږي او هم د خولې د ناروغیو تشخیص باید د داخله ناروغیو څخه وشي.

په اوسني عصر کښې د غاښو د ډاکټر او نورو ډاکترانو ترمنځ د ناروغیو د تشخیص په برخه کښې

رابطه او مشوره حتمي او ضروري ده. د ښځو نسائي او ولادي ناروغي د خولې د زیاتو ناروغیو باعث ګرځي

او دا هم لیدل شوېده چې زیاتره ښځې تر هر لنګون وروسته یو غاښ د لاسه ورکوي او یا غاښونه ئې چنجي خوري او هم د اوږې د وینې کیدو ناروغي ورته

پیښیږي، په تیره بیا که ښځه ډنګره وي په هغه وخت کښې چې ښځه نسائي او ولادي تکلیفونه ولري د خولې او غاښو ناروغي هم منځ ته راولي.

وړوکي تل کله چې غاښونه ئې زیږي اسهال او ناروغه وي، بیلې بیلې غیر صحي او غیر طبیعي غذاوې

د زیاتو ناروغیو سبب ګرځي، دا ځکه اوس غذائي رژیم د زیاتو ناروغانو د پاره د علاج وسیله ده او

په داسې حالاتو کښې د خولې او غاښونو خرابوالي هم ناوړه اغیزه لري.

د دیابت (شکرې) ناروغي، نقرس، زیاته چاغي روماتیزم او نیم سري زیاتره د اوږې د خرابیدو او ناروغي سبب کیږي او په دغسې وختونو کښې د غاښو

د سوري څخه نو راوزي او دغه حالت پرله پسې تداوي ته کار لري، دا ځکه چې د ډوډې خوړلو په وخت کښې تل دغه مواد د ډوډې سره یو ځای شوي او بدن ته

داخلیږي او د هضمي جهاز بیلې بیلې ناروغي منځ ته راولي.

نو باید هر څوک د خپلو غاښو او خولې په ساتنه کښې ډیر ډیر احتیاط وکړي، او که د خولې او غاښو

ناروغي او درد ورته پیښ شي باید سمدستي د غاښو ډاکټر ته ورشي او باید په بې اهمیته ډول ورته و نه ګوري او علاج ته ئې اودمرو وځوغیږي.

---

## دیوه مشهور طبیب پیژندنه:

# آلیبر

د فرانسې یو لوړ طبیب او د جلدي ناروغیو متخصص ؤ چې د ۱۷۶۶ څخه تر ۱۸۳۷ پورې ژوندي ؤ.

د ۱۸ لوئي او ۱۰ شارل طبیب او د فرانسې سرطبیب ؤ چې په جلدي ناروغیو کښې ځینې تالیفات هم لري.

دمحمدعلی خواجه‌ژباړه:

د خارجی منابعو څخه :

# دهند

## د حیدر آباد ښار

ښایی چی د حیدر آباد ښار د هند د کلتور او تمدن چی په تیرو پیړیو کښی په هغه هیواد کښی منځ ته راغلی د پیژندګلوی ډیره ښه نمونه ده په دی ښار کښی د لرغونی زمانی او اوسنی مدنی زمانی مظاهر څنګ پر څنګ لیدل کیږی .

دهند د شمال او جنوب خلک نژدی او پر له پوری ژوند سره کوی او د ژوندانه د طریقی تر منځ د ملک الطوایفی د وحیه په نظر راځی .

دغه ښار د خارجی گرزیدونکو لپاره ښکلی ودونه د ننګی او لویدی مانی، موزیمونه او زیږه ورونکی لرغونی ډیر آثار لری .

کوم شی چی لیدونکی لری هغه مدنی هو ټلونه دی چی ودوودو په دی ښار کښی تر جوړیدو لاندی دی .

د حیدر آباد ښار چی د موسی درود خانی څنګ ته پروت دی په حقیقت کښی د دوو ښارونو څخه جوړشوی دی، د گولکونډا لرغونی ښار، او دوهم ښار چی د سکندر آباد په نامه یادیږی او نوی ښار چی په ۱۵۹۱ میلادی کال کښی جوړشوی دی .

د دی ښار پر شاوخوا باندی لوړی غونډی د اگرزیدلی او هغه گاډی چی یو په بل پسی پرتی دی غیر معمولی طرز ئې منځ ته راوړی او ننداره کوونکو ته د ننګلونو معبدونه وربه یادوی .

حیدر آباد د بشر په لاس جوړ شوی دریا چی لکه حسین ساگر، حمایت ساگر، عثمان ساگر د میر اعلم او میر جمله حوضونه او داسی نور لری.

د نوموړی رودونو او حوضونو ښکلا د موسی د رودخانی بی رونقی چی او په ئې د ساتلو او د هغو د مصرف له کبله لیږ شوی جبیره کوی .

### د مادر ښار:

د سید حسین ساگر د پاسه یو ښکلی واټ تیر شوی چی د حیدر آباد او سکندر آباد دوه ښارونه سره نژدی کوی ،هرمو ع خارجی گرزیدونکی او ددغو دوو ښارونو په ژرها ژ خلک د غه بند ته چی ښځیله د حیدر آباد خلک (گاتا) ورته وائی ورځی تر څو چی د دغی دریاچی د آزادی هوا څخه خپل دماغونه تازه کړی خوندور کبابونه وخوری یا په وړو کښتیو کښی سپاره شی او یادا چی د نورو بیړیو د تګ راتګ څخه چی د ځلیدونکو او یو پر مخ باندی گرزی خوند واخلی .

د لوړو غونډیو د یوې غونډۍ پر سر باندی د گولکونډا ښار چی ما د حیدر آباد ښار د نومیږی واقع دی .



د حیدر آباد د څلور منار یوه منظره

د ښار د قهرمانۍ د داستانو او نکلونو سره اړیکي لري، دغه ښار ځکه چې د مغلو د لوی لښکر و په مقابل کښې بوده نهه میاشتي په مېړانه ودرېد او وروسته تر هغه لې

په تصرف کې راوړی، د ګولکونډا بې اندازې شته منۍ د مغلو امپراطور د رجلب کې ځکه چې په دې ښار کښې د جواهراتو بلو د لکه کوه نور او دریانور یو عادي او معمولي کار و باید ووایو چې ګولکونډا د جواهراتو د کانو د رلودونکی دی.

په یو زمانه کې د ګولکونډا غرنی کلا د رچه کاکتیا حاکم (وارانګل) جوړه کړی وه، بو معبد هم چې په هغه زمانه کښې جوړ شوی و او س هم هغه جومات ته نو دي چې په میلادي ۱۵۱۸ کال کښې د قطب شاهي د پاچهی موسس قلي قطب شاه په وسیله جوړ شوی و موجود دی، نوموړی پاچا د دغه بلاد کلا جوړه کړه او ښار ئې پراخ کړ.

د هغې زمانې د مهندسي شهکار دی د اوسنی زمانې د معمارانو د تعجب او حیرانتیا سبب شوی دی، ده و کولای شو چې د ښپلو او په دننه د بلو لو نو په وسیله د غونیی ټ لاندې هغه د هغې د پاسه پورته کړي ، د دغې کلا د چغ او آواز انګه تر دې لا هم حیرانوونکې ده تر ګنبدې لاندې د چړ رو د لاس ټکولو آواز د غونډۍ پر سر باندې چې د پاچا د دربار ځای و اورېدل کېږي د دغې کلا ژدې مځکو ته د قطب شاهي پاچاهانو د کورنۍ آرامګاه ده د دغې آرامګاه ګنبده په سپینو مرمرو باندې ښایسته ده.

د ګولکونډا پاچهان شیعه ؤ د محرمي د مراسمو اجرا کول د دې ښار د خلکو د ژوندانه نه بېلېدونکی برخه ګرځېدلې ده.

په دې ښار کښې د اسلام د پیغمبر حضرت [ص] د لمسي حضرت امام حسین [رض] د شهادت له کبله لس ورځې د ماتم مراسم تمانځل کېږي د محرمي په لسمه باندې د ماتم خپل اوج ته رسیږي او په هغه کښې په زرهاؤ تنه خلک ګډون کوي.

د عزادارۍ ځای د «علم بی بی» په نامه سره چې بوه ټولوا کمنی تاسیس کړی په خاص ډول سره برم لري په دې ځای کښې د بیلانو، اوښانو، اسانو او ماتم کوونکو او ډله صفونه په ار دواد

دی ژ بو سره د مرثیي په ویلو پیل کوي د حیدرآباد نظام د شهیدانو د احترام له مخې د ا ځای په داسې حال کښې چې لوڅې پښې ده وی خپلی ښاري ماڼۍ ته نژدې قبلوي.

لوی ودانۍ:

سلطان محمد قطب شاه د قطب شاهي د پاچهي جوړوونکي د زبر دست ښار جوړوونکی له جملې هغه ؤ که چېرې د څلور منارو له دروازو هغه د ښار ښاوخوا ته نظر وا چول شي د دې کار حقیقت به په بشپړه توګه تاسو ته معلومه شي.

د څلور لوی واټونه چې د دغې دروازې د څلور د خواؤ هغه تیر یږي او بو و بل ته په قایمه زاویه سره دې جوړ کړی او ټول مسجدونه، منارې، مدرسې روغتونونه، کاتالونه مهمان خانې، کاروان سرایونه او ماڼۍ ئې د دغو واټونو تر څنګ آباد کړی ل د دغو ودانیو تر منځ د څلور منارو د دروازې او د مکې مسجد بې سارې دی.

د څلور منار طرح د محرمي د مراسمو هغه سرچینه اخستې ده د دغې دروازې منارې تا زیاته ورته والی لري چې د امام حسین [رض] مقبره د لیدونکو ذهن ته مجسمه کوي، که د څلور منارو برم او عظمت د نړۍ په ګرځېدونکو پام ځانته را اړوي خو د مکې د مسجد ظرافت او سادګي سیاحینو ته تر هغه لا په زړه پوري دي، د دغه مسجد مستطیل تالار، چت او ظریفې تاخچې په جوړولو کښې چې په یوه پراخه محوطه کښې جوړ شوی د مکې معظمې د کعبې د خونې خښه پیروي شوې ده په دغه تالار کښې ۱۰۰۰۰ تنه په راحت سره ځایېدلای شي.

شاهي عاشور خانه چې د قطب شاهي له ودانیو هغه ده د «پتر ګاټي» په واټ کښې واقع ده نوموړې ودانۍ د ارګیو هغه جوړه شوې او اوس هم د هغه مینا کارۍ د لیدونکو سترګې څلوي، د شاهي عاشور خانې په

مخامخ د دیوان دوده وداني به نظر راځي چې هلته د سالار جنګ مشهور موزیم دی او س دغه موزیم په نوی ساختمان سره تنظیم شوی دیوان دودهی بوه لویه ودانۍ ده چې د ملوک الطوایفی دوره د په زوړ سبک سره جوړه شوې په دغو ودانیو کښې د ودانیو لوی شبکې موجودې دي.

(پاته د پښتی به ۳۰ مخ کې)

د مصطفی لطفي منفلوطي له العبرات نومي عربي کتاب څخه:

د عبدالقدوس «نجیب» ترجمه:

«دوهمه برخه»

# یادونه

ده غوښتل چې له یوچا څخه د هغې مسافرخانې پوښتنه وکړي چې د مخه پته ورکول شوې وه خو بدې شنه‌سهارتې هیڅوك نکړ پیدا، څو چې د شنبل د ولې غاړې ته ورسید.

کله به ئې شنو ځنګلو ته کتل او کله به ئې سرسبزو باغو ته نظر اوښتی د ښار د خلکو دو یښیدو په انتظار به ئې ځان پدې او به هغه مشغولاوه.

امیر پداسې حال کښې چې د اندیښنو په سیند کښې لاهو روان ؤ ناڅاپه ئې پر یوې هسپانوي پېغلې چې په حسن کښې ئې د حور اسم سپوږمۍ شرمولو سترګې ولګیدې چې د یوې ښکلي ماڼۍ له ور څخه راووتله

د سرو زرو او د صلیب ئې پر سپین ټټر ځوړند ؤ چې د ملنګو ئې هر یخوا ته زړینې بلوشې خپرې کړې وې ترشا ئې یو څلمی مرئي چې مقدس کتاب ئې په تخرګ کښې ټینګ نیولی ؤ روان ؤ ؛ ددې چې له لیرې څخه

امیر په سترګه شو کړ او ئې نقاب له مخه څخه نیم کښته کړ او په فصیحه عربي ژبه ئې چې لږ څه عجمي الفاظ ورسره ګډ وه له ده څخه پوښتنه وکړه:

ځوانه د کوم ځای یې؟

مسافر راته معلومیږي.

امیر جواب ورکړ:

هو! مسافریم او اوس دستي دې ښار ته داخل شوم غواړم چې کومه مسافرخانه راوښیې.

پېغلې چې ده په وینالو کښې د شرف او درو ندوالی آثار ولیدله، نو ځان ئې ده په پیژندلو سره مکلف وباله، خو ځملاتې د او وخت مناسب و نه ګاڼه صرف د ګوتو په اشاره سره ئې دی ور ښووه چې په ما پسې راځه.

دوا ړه د حسن او ښکلا د آسمان دوه ستورې اخ بر اخ روان شول څو د ښار عمومي مسافرخانې ته ورسیدل.

دا نو پېغلي په خندا ورته وویل:

ځوانه! دغه د مسافرانو د شپې د تیر ځای دی، زه اوس در څخه رخصتیږم مګر هو ښ کوه چې هیر مې نه کړې اودا په یاد لره چې د ضرورت په وخت کښې ستا سره هري ممکنې مرستې ته حاضر یم.

دا چې ئې وویله سمدستي په یوه نږدې کلیسا ننوتله.

الکه څنګه چې د آسمان مخ به توره ترږمې کښې په رڼو ستورو سره یو دراز بل دراز کیږي او کله بیا د شهاب په لویدلو او د زهرې په راختلو سره خپله یوه څنده ځلوي او کتونکي د لمر راختو ته متوجه کوي بیا ژر د لمر رڼا خادر دستورو پر مخ راسي راڅوړند کیږي

چې د هغو د وجود حدس بیا کرچ نشي کیدای، همدا شان د انسان زړه د عواطفو او هیلو په رڼا کښې کله یو دراز او کله بل دراز شي څو د محبت د لمر د ځمار و سترګو کښې ور باندې و ځلیږي او د وجود نقشونه ئې پر مخ ویلي کړي.

امیر اوس د غرناطې ښکلي ښار په هغو سترګو نه وینې لکه د مخه چې ئې لیده د وحشت په عوض کښې ئې انس د تیارې په عوض کښې ئې رڼا او د مرګ په عوض کښې ئې خودا خوږ ژوند په نظر ورځي ؛ د انتقام د جوش

جذبه ئې ساکته او د غضب انقلاب چې دده ټول اعصاب ئې له طبیعي حال څخه منقلب کړي وه آرام شول.

اوس به د هغو مسجدو له مخه سره چې په کلیساؤ بدل شوي وه آرام تیر یدی او د خپلې هغې محبوبې د لیدلو په هیله به ئې د هغو پر اطرافو طواف کاوه چې بو کړې ئې لیدنه ورسره شوې وه ؛ کله به بیا د تیریدونکو

نجونو د ټولي خوانه متوجه شو چې ګوندي خپله ورکه معشوقه پکښې ومومي، د منارو صلیبو ته چې به ئې و کتل د هغې د ښکلي سینې ځوړند صلیب به ور پیاد

شو لا به ئې د لیدنګ تلوسه پسې زیاته شوه، د کلیسا د زنګولو آوازونکي به د هغې هغه خوږې خبرې ورپه زړه کولې، چې په یو ساعت ملاقات کښې ئې ورسره کړې وې. له کلیسا او ناقوس څخه ئې بدې ملحوظ نفرت نه کیدې ځکه چې د خپلې زړه وړونکې مینې وجود ئې پکښې احساساوه.

امیر به هره ورځ د شپېل شنو پڼیو ته د ښکلو ماڼیو د لیدلو په قصد تې او هلته به ئې د هر قصر دروازې ته په حیر حیر کتل، هغه قصر ئې لټاوه چې ښکلې پیغله څنې راوتلې وه، په عین حال کښې به ئې د تیریدونکو ښځو مخو ته هم یو نظر اچاوه چې ګوندې دا پکښې ووینې مګر افسوس چې په پای کښې به یقیني ډول سره مایوسه شو او د پلرونو د هدیري لاره ئې واخیسته او هلته ئې د قبرونو په منځ کښې په ډک زړه سره په زوره وژړل او د اوښکو سیلاب ئې پر ښکلي مخ راشیوه شو.

دا نه ده معلومه چې د امیر اوښکې د ښوانی غم له اثره څخه توئیدې او که د نوی ګروم له مایوسی څخه.

وایي دا پیغله چې امیر ئې له فراقه څخه د اُبې ماړ په حیر تاویدې (فلورندا) نومېده او د یوه ګوندي مشر لور وه، پلار ئې دوه کاله دمخه د مستبد حکومت له طرفه څخه د محکومو طبقو د دیني او مذهبي حریت د غوښتو په جرم سره په مرګ محکوم شوی و، د دې نتلي داغم لا نه و سوړ شوی چې خواخوږې مور ئې له ګرومه څخه د مرګ پر لاره شوه، او غم ئې یو په دوه شو مجبوره شوه چې له اتو کالو څخه د زهد او تقوي په کنج کښې معتکفه کښېني او غیر له یوه شخصي مربي څخه بل مصاحب و نه لري.

کله چې به دې د غوښتل چې لږ څه خپل غم سپک او د زړه من زړه سوده وکړي نو به د غرناطي د ړنګو آثارو په منځ کښې هروخت د دیدله او په ډېر حیرت سره به ئې د دوی د مالکینو د تللي جاه و جلال پر اسف آوره حال باندې څو غټې غټې اوښکې تویولې.

د دې ځای وګړو دا ښکلې راهبه بلله او ډېر قدر په سترګه ئې ورته کتله.

یوه ورځ ئې د بنو احمر په مقبره کښې پر هغه عربي ځوان سترګې ولګېدې چې څو عمر د مخه ئې په لار کښې لیدلی و، د دې ځوان د قبر موچیدو او لا ورولا اوښکو د هغې نرم او مهربانه زړه ډېر متالم کړ. ژړاتی د هغه سر له تورو خاورو څخه راپورته کړ او په ډېره مهربانه لهجه سره ئې ورته وویل:

ځوانه! پخپلو تیرو باچهانو پسې ژاړې، وژاړه بیشکه چې د ژړا او زړه سوي وړ دي، په اوښکو ئې د قبرونو تیږې خیشتې او د کلو وچ بوټي او به کړه.

امیر خپلې اوښلنې سترګې د دې ځوانه وا ړولې او په ډېره دیدلي آواز سره ئې ورته وویل:

زما ګرانې خواخوږې لکه چې ته هم په دوی پسې د ژړا اوښکې تویوې او د حسرت اسویلي کاږې؟

فلورندا جواب ورکړ:

ځوانه نه یوازې زه بلکې زما نه هم په دوی پسې ژاړي زما په نزد هیڅ شی هومره د ژړا او افسوس وړ نه دی لکه د کورنیو د مشرانو ورکه او د عزیز کرده ؤ وړ پېدې.

امیر ته د دې د ویناو ډېر خوند ورکړ او پداسې حال کښې چې د تشکر سر ئې ورته ښوراوه، دې وویل:
له هغې ورځې څخه چې دې ملک ته راغلی یم پیله تامې بل د عاطفې او مهربانۍ ډک نه دی تر غوږو شوی چې زما د نتلي غمجن زړه څه سوده به شوی وای.

فلورندا: تا د دوی د نوړو قیمتي او باارزښته آثارو چې دلته موجود دي سیل کړیدی که یا؟

امیر پسله لږ مکثه څخه په ژړا جواب ورکړ:
ماغیر له دې څو نړدو قصرو څخه چې ستا ونکو ئې نه ور پېښو دلم او د دوی نیو هیډل چې اصلي مالک ئې زه او د افتخار رجع ئې ما ته کیږي نور څه نه دي لیدلي.

فلورندا: آیا ته له هغو عربي باچهانو سره چې دلته ئې د بزم او جلال دوره تېره کړیده کوم نسبي اړیکي لري؟؟

امیر: یه زما ګرانې، بلکې زه د دوی ته د غلامي نسبت لرم، او هغه نهال ئې یم چې د نعمت او احسان په باغچه کښې مې ئې وده کړیده.

راهبه فلورندا د دې ویناؤ په اوریدو سره ډېره مخ ته حیره شوه او په ډېر انکسار او مهرباني سره ئې ورته وویل: ځلمیه! سبا دلته راشه چې قول آثار در باندې و وینمه.

(پاته لري)

«د ۲۸ مخ پاته»

# د هند حیدر آباد ...

د حیدر آباد نظام هم د خپل حکومت په دوره کښې ښار ته پراختیا ورکړه ، ښکلي پارکونه ، د حیدر آباد د قانون جوړولو د مجلس ساختمان ، د سالارجنګ موزیم ، د ورزش سټیډیو ، پاولیون آ جانتا عالي داد ګاه ، عثمانیه روغتون ، عثمانیه او ادبیاتو دانشګاه او لوړې او انګي ماڼۍ د هغې دورې د ښایسته او ښکلو ودانیو څخه شمېرل کېږي .

مختلط تمدن :

حیدر آباد نه یوازې د هند یو ښار دی چې د ښکلو ودانیو ، لویو او پالو ، ښایسته باغونو او نورو اثارو لرونکی دی بلکه د هغه وګړي هم ورته ډېره ښکلا او جذابیت ورکوي .

د ډېرې موډې را پدې خوا حیدر آباد یو بین المللي ښار دی ، په دې ښار کښې عربان ، ایرانیان ، افغانان ، سیدان او د حبشې خلک یو تر بله څنګ په څنګ ژوند سره کوي ، د ډېرو پېړیو راهیسې دغه تکمونه په دې ښار کې ګذاره کوي او د ګډ تمدن څخه چې د دې ګذارې او میلمه پالنې څخه ئې نمایندګي کوي ګټه اخلي ، دوی د اردو په خوږې ژبې سره خبرې کوي دغو خلکو خپل پخوانۍ دودونه او رواجونه په هغه لومړني بڼه ساتلي دي .

د حیدر آباد د خلکو تر منځ تر ټولو زیات د کلي ښایسته کولۍ ګان د لمبادا په نامه د سړي توجه ځان ته جلبوي او د لمبادا ښځې د ارغواني ګولکو نداملکي سړي ته په یاد وروي . (پای)

د روزګان د ولايت د مرکز
تيرين کوټ د نوي ښار يوه
منظره





د کندهار د ارغنداو د
پر فيضه سيند تر سربند
لاندې دشاه ولي کوټ
په برخه کښې پرته
سيمه